# حرک

اوولسم کال، دویمه، پرلپسي۱۲۱مه گڼه،
جدی – دلو ۱۳۹۹ل، جمادی الثانیة ۱۴۴۲هـ ق، جنوري۲۰۲۱م

## د دوحې تړون ماتول ځان ته د قبر کیندل دي ؟ !



سولې او شرعي نظام ته
د طالبانو ژمنتیا او لېوالتیا !!

## که جوابېدن!
د جګړې د اوږدولو پرېکړه وکړه!!



د قطر سره ناڅاپي مقاطعه
او سوله په کومه معنا؟

ارگ نشینان در هراس از صلح !
وملت خشنود آن




پیمان دوحه ضرورت امریکا بود !

- خپلواک چې ما پېژاند
- هغه! خوددار او خپلواک مطمئن ..!
- مرحوم مطمئن؛ باب درخشان در تاریخ مقاومت و ادب
- بیا به جهان راپسې ګورې نه به یمه!
- مطمئن؛ د جهادي ادب ځلانده ستوری

## مولوي عبدالحی مطمئن رحمه الله
... د شعر او نثر ځواکمن قلموال

د وفا او سپېڅلتیا دنګ منار
مرحوم مطمئن ته!

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

# څرک

اوولسم کال، دویمه، پرلپسې۱۲۱مه ګڼه، جدي-دلو ۱۳۹۹ل،
جمادی الثانیة ۱۴۴۲هـ ق، جنوري۲۰۲۱م

امتیاز :

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر، حمید، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |

یادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پته :
srak_111@yahoo.com

## لړلیک

# د دوحې تړون ماتول ځان ته د قبر کيندل دي ؟!

امريکايان له ۱۹ کاله زور ازموينې، هرډول پوځي، سياسي او اقتصادي فشارونو او حربو له استعمال او تجربه کولو وروسته چې بله کومه چاره او چانس و نه موند؛ نو خپل خير او نجات يې په دې خبره کې وليد ترڅو له اسلامي امارت سره د مذاکراتو او سولې لار غوره او د دوحې تړون ته غاړه کېږدي، دغه پرېکړه يوازې د امريکا د هغه وخت د سياسيونو او د سپينې ماڼۍ د چارواکو نه وه، بلکې ترټولو زيات پکې دمطرحو امريکايي جنرالانو، پنټاګون او دسي آی اې ارزو او تلوسه وه چې نور بايد دافغانستان نه ګيونکې او بې پايلې جګړې ته دپای ټکی کېښودل شي او ټول پوځيان را وغوښتل شي.

هماغه وو چې دامريکا ډېر کم پوځيان پاته نور ټول له افغانستان څخه وکوچېدل، لسګونه مهمې اډې چې مزدورانو او جاسوسانو يې دلسګونو نورو کلنو د چليدا او شتون خوبونه ليدل دهغوی په وړاندې ګډې وډې، ټول وسائل اوتجهيزات يې ترطنه پورته او د اډو تش کالبوت ته يې اورونه واچول؛

اوس چې د جوبايډن په مشرۍ نوی دولت رامنځته شوی نو دکابل شړېدلی او پړمخې پروت رژيم له ځان سره دا ببولالې وايي، چې بايډن ددوحې تړون ماتول يا له سره ارزول غواړي.

د امريکا او د غرب د زياتره هغو کار پوهانو چې په افغانستان کې کومې مشخصې شيطاني ګټې نلري او مسائل په خپلواک ډول څېړي په دې خبره معتقد دي، چې بايډن به هيڅکله هم د دوحې تړون دماتولو تېروتنه و نه کړي، ځکه امريکا دلته نولس کاله پاتې شوه، زرګونه عسکر يې ووژل شول او تقريباً تر يونيم (ټريليون) زيات ډالر يې مصرف شول، ولې نتيجه يې صفر وه.

بله مهمه موضوع داده چې د کرونا وبا او نورو نړيوالو چيلنجونو د امريکا اقتصاد، صنعت او مالي پراختيا ته کلکه ضربه ورکړې او ورکوي يې، بايډن که په دغه ځار ځپلي حالت کې يو ځل بيا د افغانستان دجګړې بار ته اوږه ورکوي او له سره بيا جنګ پيلوي دابه يې پوره ليونتوب او امريکايي ولس ته د قبر کيندلو په معنا وي.

له بل اړخه امريکايان او بايډن پوهيږي چې کابل کې ناست او تش په نوم واکمن کسان له يوه سره غله، قاتلان لار نيوونکي، پاټکسالاران، جنګي مجرمين او د نړۍ په کچه پېژندل شوي مفسدين دي، نو په هغوی له دې زيات مصرف او سرمايه ګوزاري هم له افغان او هم امريکايي ولسونو سره تاريخي جفا اوخيانت دی.

د امريکا او کابل ادارې روانو حالاتو ته په کتو ويلی شو، چې د دوحې تړون درناوی او عملي کول د افغانانو، اسلامي امارت او هم امريکايانو په خير او ګټه ده، امريکايانو که دا چانس بايلود انجام به يې له شک پرته دپخواني شوروي اتحاد برخليک او حالت وي.

# که جوبايډن!

## د جګړې د اوږدولو پريکړه وکړه!!

ارمان

په امريکا کې د ټرمپ د شکست وروسته د ديموکرات ګوند «جوبايډن» د نوي ولسمشر په حيث لوړه وکړه، د بايډن په ولسمشرۍ کيدو سره د نورو ترڅنګ د کابل اوسني لاسپوڅي حکومت سره دا هيله پيدا شوې ده، چې ګواکې هغه (بايډن) به د افغانستان اسلامي امارت او امريکا ترمنځ د خارجي ځواکونو د وتلو او د اشغال د پای ته رسيدو په اړه د دوحې هوکړه ليک لغوه اعلان کړي، په بل تعبير يعنې د کابل رژيم هيلمن دی چې د امريکا نوی ولسمشربه د افغانستان روان اشغال ته د نور طول ورکولو لپاره په افغانستان کې يرغلګر ځواکونه پاتې کړې او په دې توګه به د لاسپوڅي رژيم پردېپالو چارواکو ته د افغانانو د رګونو څخه د وينو زبېښلو نور فرصت او چانس په لاسو ورشي.

بيشکه! د امريکا نوی ولسمشر به دا واک ولري چې هغه د خپل وړاندينې حکومت په کړو وړو باندې بيا کتنه وکړي او په اړه يې نوې سپارښتنې او واړنديزونه را مخته کړي، خو دا هم حقيقت دی او ضرور به يې د امريکا نوي ولسمشر او کابينې ته ادراک وي چې په افغانستان کې د دوی لخوا د ځواک کارولو ټولې حربې او وسلې ناکامه شوې دي او د هغه وروسته پخپله د ديموکرات ګوند لخوا د پخواني ولسمشر بارک اوباما په دوره کې امريکا د طالبانو سره د مذاکراتو لړۍ شروع کړه چې هغه د ټرمپ په دوره کې د اوږدو چنو وهلو وروسته د افغانستان اسلامي امارت او متحده ايالاتو ترمنځ د اشغال پای ته رسولو د هوکړه ليک په لاسليکولو منتج شوه.

بله دا چې د سياسي کتونکو په اند: د امريکا ځواکونه به هسې هم يوه ورځ نه، يوه ورځ ضرور له افغانستانه وځي او امريکا به د اشغال نه لاس په سر کېږي، ځکه چې هيڅ يو جنګ د نامعلومې زمانې او لامحدودې مودې پورې غځول کيدای نشي- او نه کوم هيواد کولی شي چې هغه يو بل هيواد تر لامحدودې مودې د خپلو پوځي هډو د مرکز په توګه استعمال کړای شي.

او بيا د افغانستان پشان يو هيواد چې هلته د نړۍ ډېرو يرغلګرو او جارح ځواکونو په دې ارمان باندې خپلې ککرۍ خاورې کړې، چې هغوی افغانان د خپلو ځانو لپاره غلامان ګرځول او تر اوږدې مودې يې پرې د حکومت کولو خوبونه ليدل، او همدغه تراخه غوړپونه امريکايي يرغلګرو ځواکونو له تيرو شل کلو راهيسې وڅکل او دلته يې د لوی شمير ځواکونو ککرۍ په دې ارمان خاورې شوې چې څو افغانان د ځان غلامان وګرځوي، ليکن افغانانو هغوی ته د خپلو سرونو په کوپريو کې اوبه ورکړې، ورته داسې د عبرتونو څخه ډک سبقونه يې ورکړل چې د امريکا راتلونکي نسلونه به يې تل ياد ساتي او بيا هر کله چې په افغانستان او افغانانو باندې د يرغل نوم اخلي نو ورباندې سل ځله به سوچ کوي.

نــو پــه دې وجــه د امریکـا نـوی حکومـت او ولسمشر دې هم په ښه زور او زير سره د افغانسـتان او افغانــــانو د میړانــــې او قهرمانۍ پخوانی او اوسـنی تاریخ ولـولي او پـه خاصـه توګه د تیرشـل کلـن تـاریخ پاڼې او یاداښـتونه خـو دې په ښه غور سره ولولي، چې دلته دوی پـه دومـره اوږده موده کې څه ترلاسه کړل؟ او څه يې وبایلل؟ ښکاره ده چې دلتـه د امریکا لاسته راوړنې په نشت حساب دي او کوم څـه چې يـې وبایلل، هغه ټولې نړۍ ته معلوم او ښکاره دي او تر ټولو لوی يې دا دی چې نن ورځ امریکا هغه د ۲۰۰۱ زکال امریکا نده پـاتې، د ځواک او غرور ټول زور يې اوبه شوی دی، اقتصـاد يـې د رکـود سره مخ شوی دی، پـه نـړۍ کـې يـې اعتبـار او موقـف تـه زیـان رسیدلی دی، نو که بیا د امریکا نوی حکومت د سرټمبګۍ نـه پـه کار اخیستو سره دلته د جګړې طولاني کولو فیصله وکـړي، دا بـه د امریکایـــانو د تیروتنـــو او اشـتباهاتو يـو بـل کرکـرجن تسلسـل وي او پـه دې سره بـه نـړۍ کـې د امریکـا دوه مخـې نوره هم ښکاره شي او هم بـه د امریکایانو اعتبار او باور ته په نـړۍ کـې درونـد زیـان ورسي، پریمانه پیسې او وسلې به یـې د جګـړې د لمبـو خـوراک شي او په زرګونو نور عسکر به يې په جګړه کې مړه او ټپیان شي چې له امله به يې بیا خامخا امریکا له افغانستانه د وتلو پریکړه کـوي او په خجالت اوشرمندګۍ سره به تیښتې کولـو تـه اړ کېـږي. نـو معقوله داده چې کله سبا امریکا لکه د ویتنام په ډیـره شرمنـدګۍ او خجالت سره په تیښته د ځان ویستلو هڅه کوي، ښه داده چې نن د دوحې هوکړه لیک نه په استفاده او ورتـه پـه احـترام لرلـو سره پرته د کوم ډار و بیم نه خپل پاتې عسکر وباسي او په اړه یـې د ټرمـپ تګـلاره تعقیـب کـړي او هیڅکلـه دې د کـومې نـوې پریکړې یا سیاست غوره کولو جسارت نکوي.

**د امریکا نوی حکومت او ولسمشر دې هم په ښه زور او زیر سره د افغانستان او افغانانو د میړانې او قهرمانۍ پخوانی او اوسنی تاریخ ولولي او په خاصه توګه د تیرشل کلن تاریخ پاڼې او یاداښتونه خو دې په ښه غور سره ولولي، چې دلته دوی په دومره اوږده موده کې څه ترلاسه کړل؟ او څه یې وبایلل؟**



## د وفا او سپېڅلتیا دنګ منار

# مرحوم مطمئن ته!

عتیق الله عزیزي

که رښتیا درته ووایم؛ ته خو ددې زمانې سړی نه وې، ما په ژوند تاته ستا دا خپل پاک ضمیر، ملنګي، شاهانه فقر، په دین، وطن، طالب، مجاهد او دربدره ولس په حق کې ستا د بې الایشه همدردۍ، خواخوږۍ او ترحم انځور او عکاسي نشوی وړاندې کولی؛ ځکه زه پوهېدم چې ستا په حیاناکو سترګو او پاک طینته مزاج کې دا خبره هم د برداشت او ځایدلو وړ نه وه چې څوک ستا په مخ کې ستا صفت او ستاینه وکړي.

**اتله اشنا!**

ماته خو معلوم وې، چې کله امریکا ـ ناټو او نورو اتحادیانو یې په ګران هیواد یرغل وکړ او د اسلامي امارت تمرکز له ښارونو څخه اطرافو، غرونو او رغونو ته ولاړ؛ همدا ستا کفر لړزونکې حنجره او غږ و، چې د زړګونه رسنیو او تبلیغاتي شیطاني وسایلو مخته ودرید، د دښمن ټول رعب او داب دې هیڅ وشمېره، په خپل نوم او تشخص دې مرکې وکړې او نړیوالو ته دې ثابته کړله چې اسلامي امارت اوس هم شتون لري، په خپله پاکه داعیه ولاړ دی، یوازې له دولتي تعمیرونو او مرکزونو څخه خوځېدلی دی.

کول؛ چې هغه مهال د سختو او مختنقو شرایطو له امله دا د هر چا د وس او حوصلې کار نه و.

**طالبه اشنا!**

ښه مې په یاد دي؛ چې کله هم د اسلامي امارت په صفوفو او داخلي نظم او نسق کې چا د نفاق، تشویش او تفرقې هڅه کوله، تا پرته له کوم ځنډ د حق او معرفت توره را ایستله، صحنې ته دې دانګل، پخپل رسا غږ او مرکو دې سپین له تور او تور له سپین څخه بېلول او د مخلصو مسلمانانو او مجاهدینو په زخمي زړونو به دې د مرهم پټۍ ایښوده او حال دا چې له رسنیو سره د خبرو او مرکو کولو لپاره د ټیلیفون د کارولو اچولو وس او توان دې هم نه درلود ، ماته معلومه وه چې دیوې مرکې لپاره به دې تمامه شپه ویښه تیروله .

**مجاهده اشنا!**

ښه مې په یاد دي؛ چې د هېواد په کوم ولایت او ولسوالۍ کې به مجاهدینو پر بهرنیو اشغالګرو کاري او ځپونکي عملیات ترسره کړل، نو تا به په یوه او بل نوم رسنیو ته په ډېر مهارت، تکتیک او رسنیز هنر سره هغه خبر او پېښه ولیکله او ترڅنګ به

دې يو څه ازاد ټکي هم ورسره ګډ کړل، ترڅو په اژانسونو کې په مطبوعاتي ژبه ښه وچليږي اوبيا ددې خبري پرواګيـرهم نـه وي چې څوک درته شاباسی ووايي .

دغه راز کله به دې چې د ولس د ذوق او عامـه ذهنيـت پـه تول برابره د امارت اعلاميه او غبرګون وليد په مستعارو نومونـو به دې په څومره مينه تحليلي ليکنې پرې کولې، حتی انګريزي ته به دې هم ژباړلې ترڅو دنيا او ولس د اسلامي امارت تنها پـوځي اړخ باندې قضاوت ونکـړي، بلکـې د ولـس او مسـلمان امـت پـه پېښو او حالاتو يې دردمند اوعامه شموله ومني.

## په ولس مئينه ياره!

زه شاهد وم، چې تا د امارت له چـارواکو سره د ليـدلو تمنـا ډيره نه کوله ځکه که ته څومره فقير، بې وسه او نهـار ګرځيـدې، خو دځان لپاره دې د لاس غځولو جرائت نشو کولای؛ ولې که بـه چيرته د کوم مشر چارواکي او کوم اورګان له لوري له ولس سره يو نوعه غفلت او زياتی ستا تر سترګو شوی و، تر ورستي ټکـي اوحد به دې هغه درد او غم مسئولينو ته رساوه، اګـر کـه کلـه نـا کله به ځينو مسؤلينو زشته رويه هم درسره وکړه خـو تابـه خپلـه حقه خبره اوپاک رسالت ارومرو جای ته رساوه .

## ملنګه اشنا!

تيرودولسيزو په ابتداکې د امارت د ډيـرو مشرـانو ملګـرو اقتصادي وضعيت خراب اوکمزوری و، خو ستا حالـت خـو مـا او ځينو نورو نږدې ملګرو ته لکه لمر ښکاره وه چې د خپـل ژونـد او بچيانو د راتلونکي لپاره دې هيڅ ډول ترتيب او تلاش نـه درلـود. مال، دنيا، چوکۍ او مکافات درته هيڅ نه برېښيدل؛ تـر دې چـې کله به مجلس کې د مادي ګټو خبرې چا منځتـه را واچـولې تاتـه به تکليف جوړيده هڅه به دې کوله چې مجلس بدل شي .

څو مياشتې وړاندې مو چـې پـه ګـډه د اسـلامي امـارت د مرستيال محترم مولوي محمد يعقوب مجاهد سره وليـدل او اللـه شاهد دی چې مولوي صاحب ستا خبرې ، نظرونه او مشـورې پـه ډيره مينه اوسړه سينه واوريدې ، د مسئوليت خبره يې درته وکـړه تا ورته وويل؛ چې اوس خو مريض هم يم، چندان بـه يـې حـق ادا نشـم کـړای او بـل پـه خنـدا کـې دې ورتـه وويـل چـې مـونږ مسئوليتونه هغـه وخـت تـرسره کـړي چـې دمشـخص مسـئوليت اداکول اوپرمخ بيول له شک پرته د اور سـکروټه وه ؛ اوس يـې دا نويو خواهشمندانو او ملګرو ته ورکړئ.

مولوي صاحب يعقوب حفظـه اللـه تاتـه ويـلي وو کـورني مشکلات اوارتياوي که څه لري راته ووايه ؛ خو تا خپل امير تـه هم دخپل باغروره ضمير له مخې هيڅ شخصي غوښتنه ونه ويلـه، زه درته غوصه هم شوم چې ورته ويلي به دې وو ځکه چې راتلو؛ تا ويل چې کور کې ۱۸۰۰ سوه کلدارې وي.



## وفاداره اشنا!

ښه مې په یاد دي، چې له شهید امیرالمؤمنین منصور صاحب رحمه الله سره دې کتلي وو او تاته یې په خپل مبارک لاس د پام وړ خرچه درکړې وه، ما ته د شهید منصور صاحب نږدې ملګري داسې حکایت وکړ : مطمئن منصور صاحب ته وویل چې زه خو دا خرچه په یو شرط اخلم، چې عزیزي ته هم همدومره خرچه راکړې څومره دې چې ماته راکړه او بیا مشفق منصور صاحب (نورالله مرقده ) ستا د وفا او مینې برابر لورینه له ماسره هم کړې وه.

## لیکواله اشنا!

په ظاهره خو یو درویش صفته، بې تکلفه او په ربښتیا یو خاورین صفته بې پروا انسان معلومیدې ؛ خو چې کله به د استدلال، منطق، تحلیل او وینا برج او ستیج ته پورته شوې او یا به دې قلم راواخیست او د ادب ګلبڼ ته به دې مخ ورښکاره کړه؛ مخته دې چا تاب او د څواب توان نه درلود،

که داسې نه وای نو د اسلامي امارت د مؤسس او زعیم ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله له لوري به تر پایه د هغه خاص او نازولی ویاند نه پاته کیدې او بله دا چې ستا هر نقد او ګوت نیونې ته به مرحوم ملا صاحب په سړه سینه غوږ نه ایښیدو .

هو! ته ربښتیا هغه څوک وې چې په امارت کې دې د سالمو نقدونو باب پرانیست، ستا انتقاد او ستا مجادله د شخصي ـ ګټو لپاره نه وه، بلکې د ولس او مظلومانو په درد به همیش دردمند او غمجن وې، تر هغو پورې به دې هاغه موضوع نه پریښوده، چې د امارت تر لوړ مقام او مسئولو چارواکو سره به دې رسولي اومناسب حل نه وو راویستی

ستا په ګوتو لیکل شوی کتاب (طالبان، ملا محمد عمر او افغانستان) ؛ که څه هم یو لږ کمی او تېروتنې به یې درلودې، اوپه ډیره عجله ترتیب شوی وو ولې له لویه سره خو دې د

امارت، پاک زړي قیادت ، سپیڅلو ارمانونو او قربانیو یو لوی امانت هم خوندي او د تاریخ زرینو پاڼو ته دې وسپاره ، ستا دلیل داوو چې دایوشمیر ښکته پورته جملي او مباحث مې څکه کتاب کې واچول ترڅو کتاب ددوستانو او دښمنانوټولو لپاره دمطالعي او لوستلو وړ وګرځي اویوازې دڅان اوخپلو خلکو ستاینې نه وي پکې ځای شوي

ما له ګڼو داسې ملګرو چې په کتاب کې ستا تر قلمي برید لاندې راغلي، واوریدل چې پروا نکوي، په امارت کې دې دغسې یو حساس ملګری هم وي؛ چې ملګري خپلو کمیو او تیروتنو ته متوجه کړي!

ګرانه اشنا ! ستافراق خو مو دومره زر او دومره اسانه او زمونږ ترسترګو لاندې نه وو فرض کړی د الله تعالی به نوره خوښه وه چې د اصلاح ، وفا، علم، قلم، نطق او ظرافت دنګ منار یې نور څانته وغوښت، په ربښتیا چې تا وګټله او مونږ وبایلله.

باور وکړه چې نورمې ګوتو کار پریښود زه به ستا کوم کوم ویاړونه او کمالات ولیکم ، ستاتشه به څنګه پوره کیږي ، مونږ دې دفراق په کلک خنجر ووهلو او ولاړې ....

په ګور دې د نور او الهي رحمت شغلې بلې او تلپاتې اوسه

ستا عزیزي



# هغه! خوددار او خپلواک مطمئن ..!

ابو ظهير

د روان ( ۲۰۲۱ ) زکال دجنوري په ۲۲مه نيټه د افغانستان اسلامي امارت پخواني ویاند، نوميالی ليکوال او نازکخياله شاعر «مولوي عبد الحی مطمئن» له فاني نړۍ څخه د ابدي ژوندون (اخرت) پر لور رحلت وکړ او د مرحومينو د کاروان سره يوځای شو.

انا لله وانا اليه راجعون، ان لله ما أخذ وله ما اعطى وكل شئ عنده باجل مسمى.

د مرحوم مطمئن صاحب د مړينې او رحلت په اړه د افغانستان اسلامي امارت لخوا په يوه ځانګړې اعلاميه کې خفګان ښودل شوی او همدا راز د نوموړي د کورنۍ، خپلوانو او ملګرو لپاره د جميل صبر غوښتو سربيره د مرحوم د کړو خدمتونو د قبوليت او الله تعالی نه ورته د مغفرت او جنت دعا شوې ده.

مولوي عبد الحی مطمئن د غزني ولايت د قره باغ ولسوالۍ اړوند په يوه ديندار کورنۍ کې زيږيدلی و، نوموړی د ديني علومو د مروجه نصاب له بشپړولو وروسته د پيښور ښار د «جامعه امداد العلوم» څخه فارغ شوی و او په دې توګه د شيخ الحديث شهيد مولانا محمد حسن جان او نورو علماوو څخه يې د حديثو د لويې دورې کتابونه لوستلي وو.

کله چې په افغانستان کې د شر و فساد پرضد د طالبانو اسلامي تحريک په عنوان پاڅون وشو، مطمئن صيب هم د نورو طالبانو سره يوځای د ياد تحريک سره ملګری شو، د طالبانو د اسلامي تحريک لخوا د کابل د فتح وروسته چې کله دکند هار داطلاعاتو وکلتور رئيس مولوي اميرخان متقي د اطلاعاتو وکلتوروزير مقررشو نو پرځای يې مرحوم مولوي سيد محمد حقاني رَحِمَهُ اللَّهُ دکندهار د اطلاعاتو وکلتور رئيس او مرحوم مطمين صيب دکندهار راډيو امر شو، بيا څه وخت وروسته چې کله مرحوم مولوي سيد محمد حقاني د اداره امور عمومي رئيس شو نو د هغه پرځای مولوي عبد الحی مطمين د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئيس وټاکل شو او هم د امير المؤمنين رَحِمَهُ اللَّهُ ويندوی غوره شو، د اسلامي امارت ترسقوط پورې په يادو مناصبو پاته و، واقعاً په پوره توګه نوموړي د يادو مسؤليتونو د سر ته رسولو اهليت او وړتيا درلوده.

حقيقت دا دی چې د نوموړي مړينه د يوې کورنۍ لپاره غم يا وير ندی، بلکې په رحلت يې نږدې ټول امارت غمجن او درد من دی الله تعالی دې د نوموړي نعم البدل ژر پيدا کړي.

له مبالغې پرته مطمئن صيب رحمه الله د ګڼو لويو صلاحيتونو څخه برخمن شخصيت و، په دې سربيره چې هغه د اسلامي علومو او فنونو ښه تکړه فاضل او عالم و، ښه فصيح ژبی نطاق، برلاسی وياند، نازکخياله شاعر و اديب او د ځواکمن قلم خاوند ليکوال هم و، چې په سبب يې د علمي، ادبي او سياسي حلقو يا مجلسونو دننه د پام وړ شهرت او اعتبار ورپه برخه و.

وړاندې مو وويل چې مرحوم مطمئن صيب د افغانستان اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال د کندهار د

اطلاعاتو او کلتور د ریاست په مسؤلیت سربیره د مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد مجاهد رحمه الله ویاند هم و، یقیناً د امیر المؤمنین د ویاندویی دنده یو لوی اعزاز او شرف و، په کومه چې ترپایه مرحوم فایز او مقرر پاته و. او په نسبت لرلو سره یې د مرحوم امیر المؤمنین ته د نږدې وفادارو او باوري کسانو څخه ګڼل کیده.

مرحوم یو جامع او همه جهت شخصیت و، د شاعرانو او غزل لیکونو په منځ کې د ښه کره غزل لیکونکي شاعر او ادیب په نوم یادیده، شعر او غزل یې د فني معیارونو له پلوه په تول پوره او د معنویت او شعریت نمونه و، تردې چې د ډیرو لویو شاعرانو او د شعري صنف استادان یې هم په شاعرانه صلاحیتونو او نازکخیالیو معترف وو.

د شعر لیکلو په صلاحیت لرلو سربیره مطمئن صیب په نثر لیکلو کې هم د خپلو معاصرینو څخه کم نه و، بلکې د هغوی سرخیل و، ډیر بامعنی نثر یې لیکه، هسې خانه پوري به یې نه کوله، مقصدي او روان نثر یې لیکه، د شعر پشان یې نثر هم د معنویت، معقولیت او استدلال بېلګه و، چې په لنډو پیراګرافونو، جملو او الفاظو کې یې په کم وخت کې په خورا مؤثر اسلوب سره د قلم له لارې د خپل «مافی الضمیر» د اظهار یوه ښه په زړه پورې او روانه ملکه درلوده.

څنګه چې د مرحوم مطمئن صیب یو قلمي نوم «خپلواک» هم و، رښتیا هم په عمل او طبعیت کې خپلواک و، لیکنې یې د خپلواکۍ شهکار وې، د قلم د ازادۍ او خپلواکۍ علمبردار و، څه یې چې لیکل؛ هغه یې اول د زړه په وینو خړوبول، بیا یې د قلم په خوځولو سره خپلو اندونو ته د تورو او الفاظو قالبونه وراغوستل، په لیکنو کې یې یو ډول سرشاري او لاپرواهي لیدل کیده، د ریا کارۍ او تصنع څخه یې نفرت لره، پاک زړی او د قوي عزم خاوند و، د قلم د ازادۍ سپېڅلیتا، ارزښت او د مؤثریت قدردان و، په قلم یې بندیزونه او قیودات نه زغمل، په ښکاره یې تور ته؛ تور او سپین ته، سپین ویل عادت و، له هر ډول لالچ، طمعې او



مادیت پالنې د حرص څخه پاک او بې پروا و، کله هم یې خپل څواکمن قلم او لوی نوم د دنیاوي اغراضو او مادیاتو د حصول لپاره استعمال نکړ، همیش به یې خپل قلمي صلاحیت او ستعداد له دنیاوي مادیاتو څخه لوړ ګاڼه، په دې وجه کله نا کله به ترې خپل نږدې ملګري هم خوابدي کېدل، لیکن د « ولایخافون لومة لائم » د قراني اصل په مصداق یې د هیچا د ملامتیا پروا نه درلوده، تردې چې په دې باره کې یو اولوالعزم هستي وه، په دې معنی چې یوائې صداقت او حقیقت لیکلو او ویلو ته متعهد و، نه شخصي-ملګرتیا، انډیوالی، شخصي ګټو وټو ته او نه دوستانه اړیکو ته.

هو! د مطمئن صیب د ځینو اظهاراتو او یا یو شمیر لیکنو د محتوا او مفاهیمو په سر له هغه سره اختلاف کیدای شي او د پورته لیکنې مطلب هیڅکله دا ندی چې د هغه د ټولو کړو وړو او یا اظهار د سلیقو سره اتفاق کیدای شي، ما خپله ورسره د ځینو لیکنو په اړه خپل ملاحظات شریک کړي وو او هم مې ورته په یو شمیر موضوعاتو باندې د بیا کتنې مشوره ورکړې وه، چې په ښه غور او ورین تندي یې اوریدلې وه او د ځینو په اړه یې د بیا کتنې ژمنه هم کړې وه. خو د مرحوم د خلوص، صحیح نیت، اخلاص، للهیت او

استعداد په اړه شک کول هیڅ گنجایش نلري، هغه واقعاً مخلص او پاک زړی انسان و، د اسلامي امارت اهدافو او مقاصدونه د دفاع په برخه کې سل په سله کې وفادار او متعهد و، بې کبره، بې غروره، بې ریا شخصیت و او زه به دا هم ووایم؛ چې هغه د یو منفرد مزاج خاوند و، د کوم له امله یې چې ځینې تفردات هم لرل په کومو چې د ژوند ترپایه ولاړ پاته شو.

تردې چې همدې انفرادیت د خپلو هم مسلک ملگرو څخه څنډې ته کړی و او د هغوی نه په فاصله کې اوسیده خو ښکاره ده چې د رواني پلوه دې مزاج د هغه په صحت زیات منفي تاثیر وکړ.

نور له شک پرته هغه یو مبتکر او مفکر انسان و، له جعل کارۍ او تصنع نه لرې انسان و، د هیڅ یو لوړ موقف تږی نه و او نه په کوم لوی منصب پسې سرگردان او لالهاند و، پوره خوددار انسان و، د هر هغه سړي کلک مخالف او ناقد و چې به قصداً او یا سهواً د امارت د اصولو نه د کومې کوچنۍ سرغړونې مرتکب شوی و.

په پای کې د مطمئن صیب د کورنۍ سره تعزیت کوو او دعا کوو چې الله تبارک وتعالی دې د مطمئن صیب ټول حسنه اعمال قبول کړي او مرحوم دې د فردوس جنت مکین وگرځوي او بیرته پاتې کورنۍ او دوستانو ته دې د جمیل صبر توفیق ورکړي.

اللهم غفرله وارحمه وألحقه بالعلماءِ الصالحین آمین

# خوب

مرحوم ملا عبدالحی مطمئن

عمر د ښکلو هم د ښکلو د وفا غوندې وي
چې پیدا کیږي په هغه ورځ لا فنا غوندې وي

گلاب سهار شونډې موسکۍ کړي غوټۍ وغوړوي
خو مازیگر چې سیلۍ راشي بیا تالا غوندې وي

په تروږمیو کې ډیوې غوندې پرې ټول راټول وي
خو چې رڼا شي قیمتي خلک تنها غوندې وي

ښگا مې خوب لیده د غره ډډه کې مېرې پیایم
شپېلۍ پر شونډو ږدم خو غږ مې د ژړا غوندې وي

سپینه سپوږمۍ سپینې ډبرې د سیند وځلوي
شور د چنچڼو د پاولیو د شرنگا غوندې وي

د چرگ اذان، د ژرندې شور، جوړجوړ د سیند د اوبو
ستومانه روح ته مې دا درې واړه شفا غوندې وي

د لمر له نوره آیینه هم انعکاس خوروي
د یار کاله کې راته هر سړی اشنا غوندې وي

زه چې په ویښه سترگې پټې کړم هم خوب وینمه
او زما خوبونه هم کټ مټ لکه ربښتیا غوندې وي

ځکه یې پرېښودې دوستانو مطمئنه اشنا!
نن خو دوستي وي په دنیا او د دنیا غوندې وي




حبیبی سمنگانی

# مرحوم مطمئن؛ باب درخشان در تاریخ مقاومت و ادب

عجب این نیست که مرحوم ملا عبدالحی مطمئن تماشاگه دنیا را درین میانه سالی و به این زودی بدرود گفت و از محفل داغ‌دیده و هجران‌گزیده‌ی یاران رخت بر بست، عجب اینست که او این سالیان متمادی چطور درین غم‌سرا زنده ماند!

بلی، دوستان مرحوم مطمئن می‌دانستند که از غم‌وهم روزافزون مسلمانان بر دل نازک او چه می‌گذرد. او که تاب دیدن و شنیدن این همه مصیبت‌های آمده بر سر مسلمانان را نداشت و هر لحظه از زبونی و درماندگی ملت ستم‌دیده‌اش رنج می‌برد و روزها را به‌مانند سال‌ها می‌پیمود، آخر دل ناتوان او تا چه زمانی می‌توانست او را یاری دهد.

چنانچه بنده در تویت خود نوشته‌ام: او را نه درد هجران کشت و نه ضرب بی‌مهران. او مرد مطمئن بود، اما این درد وجدان بود که اطمینان را ز تن و جانِ او ربود. او به درد اسلام و مسلمان به مثل بسمل تپید. او هر چند مطمئن بود، اما می‌دانم که مطمئن نبود. او گرفتار دردی بود بی‌درمان. بلی، درد وجدان، درد وجدان!

ما یقینا سرمایه بزرگی را از دست داده‌ایم. او نه تنها از نشانه‌های پر افتخار  و تاریخی دوره حاکمیت امارت اسلامی و مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد بود، بلکه نقش او در مبارزه و مقاومت علیه اشغال نیز بارز و ماندگار بود. در دشوارترین روزگار، که گویا کسی جرات پر زدن را نداشت، صدای رسای او هر از گاهی از رسانه‌ها بلند می‌شد و به پرسش‌ها پاسخ می‌گفت. تنها دوستان نزدیکی او می‌دانند که پس از مصاحبه‌ها، او با چه مشکلات سخت امنیتی روبه‌رو می‌شد.

نثر و شعر او در عرصه علم و ادب جایگاه والای داشت و دارد. اما او این صلاحیت خداداد را به‌جای استفاده برای جلب مادیات، در راه حقانیت و حق‌گویی به خرج داد. از همینست که دوستانش او را پیکر استغنا می‌دانند و از مواقف جرات‌مندانه‌اش همواره می‌ستایند. او هرگز شکار مصلحت‌های بیجا و خودساخته نشد.

او چنانکه در یکی از مصاحبه‌هایش پس از اعلان وفات مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد و تعیین شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه‌الله به‌حیث زعیم جدید امارت اسلامی، گفته‌بود: «وفات مرحوم امیرالمؤمنین به‌معنای وفات این حرکت جهادی نیست، مسیر این حرکت هم معلوم و پیروان و زعامت آن هم معلوم است»، او همواره به امارت اسلامی و اهداف مقدس و والای آن، وفادار ماند. با آنکه دیگران از گفته‌های او برداشت های رنگارنگ می کردند، اما او هیچگاه دچار تردد نشد.

او آن مرد مبارزی بود که در سه فرصت‌های مهم و تاریخی؛ آغاز امارت اسلامی، آغاز مقاومتِ پسا اشغال و روزهای پسا اعلان وفات مرحوم امیرالمؤمنین، نه تنها جرات‌مندانه در خط‌های مقدم دفاع از امارت اسلامی قرار گرفت، بلکه با زبان حق‌بیان خود، سامان اطمینان ملت مسلمان خود را هم فراهم نمود.

چنانچه وی در مصاحبه‌اش در باره‌ی آوازه‌ی اختلافات در صف امارت اسلامی پس از اعلان وفات مرحوم امیرالمؤمنین، می‌گوید: «هر آن مسلمانی که بر دین خدا و سنت رسول الله صلی‌الله‌علیه‌وسلم و روز محشر ایمان و عقیده دارد، هیچگاه بر مبنای تقاضاهای نفسانی اش سبب فتنه برای مسلمانان نمی‌گردد. در عصر امروزی، این دور از عقل است که همه افراد یک حرکت بر رهبری یکنفر متحد شوند، اما اینکه درین شرایط سخت اکثریت قاطع افراد حرکت بر یک امیر متحد می‌شوند، این محض نصرت خداوندی است».

او شخصیتی بود که هنوز جامعه ما از کارنامه ها و آثار گرانبهای او آگاهی لازم ندارد. اما او باب تازه ای در تاریخ معاصر آزادگی و علم و ادب بود، که ارزش و اهمیت آن با گذشت زمان بیش‌تر و بیش‌تر خواهد شد. اگرچه هنوز سخنگوی مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد وسیله قوی برای معرفت اوست، اما او یک شخصیت تناور و ثمربار علمی و ادبی بود که شناخت جداگانه اش روز به روز نمایان‌تر خواهد شد. او هرگز مرد فراموش شدنی نیست. رحمه الله

# پیمان دوحه ضرورت امریکا بود!




نویسنده : شهاب لیوال

جنگ پایان کار نیست؛ اگر امریکا فکر می کند که با اتکا به جنگ به اهداف خود نائل شده می تواند در خطا است.

بعد به کارآمدن حزب سیاسی دیموکراتان در سیاست امریکا دست پرورده های شان در افغانستان رقص وپای کوبی نموده تبریکاتی از جانب خویش به آقای (جو بایدن رئیس جمهور) منتخب ایالت متحده امریکا فرستادند .

اما هیهات که اینها جز چاپلوسی و چاکری اندکی از سیاست جهانی نمی دانند .

اگرچه برای ملت عزیز ما فرقی نمی کند که کدام حزب سیاسی در امریکا بر اریکه قدرت تکیه زده است ولی بازهم دیموکرات ها پالسی خارجی معتدلی دارند .

«۱۰ حوت » سال گذشته در یک اقدام بی سابقه میان طرفین جنگ در افغانستان (امریکا و امارت اسلامی افغانستان) توافقی به امضا رسید که بر اساس آن توافق تمامی نیروهای امریکایی در خلال چهارده ماه آینده «که تقریباً چهار ماه شان باقی مانده است» افغانستان را ترک خواهند کرد.

اهمترین مباحث در توافق نامه دوحه:

۱: رها کردن ۵۰۰۰ هزار زندانیان طالبان

۲: رها کردن ۱۰۰۰هزار زندانی حکومت کابل

۳: توقف کردن حملات هوایی نیروهای خارجی علیه طالبان برنگشتن زندانیان طالب به میدان جنگ )

بعد از آن که مباحث یاده شده در توافق نامه دوحه تا حدی جامه عمل پوشید؛ اگر چه حکومت کابل از آخرین تلاش هایش برای رها نکردن زندانیان طالب استفاده کرده اما نا امید شده مجبور به پذیرفتن فرمان بادارش یعنی امریکا شد.

بلی در ادامه تخریب ها ! حکومت کابل در این اواخر آهنگ ناخوشایند تخریب کردن‌پروسه گفتهان صلح را می نوازد که به بهانه های طرف مقابل امریکا ، طالبان را متهم به رعایت نکردن توافق نامه می نماید .

حکومت کابل ادعا دارد که زندانیان رها شده از زندان دوباره به میدان نبرد برگشتنه اند درحالی که هیچ نوع ثبوتی برای مدعای شان ندارند .

فرض کنم که این ادعای شان حقیقت دارد ؟

آیا نیروهای امریکایی دست از حملات طیاره های بی سرنشین برداشته اند؛ آیا اجیران خود ؛ یعنی حکومت کابل را چنانی که در توافق نامه یاده شده است کمک نظامی و تجهیزاتی نکنند کرده اند؛

بنا ما گفته می توانیم که طرف مقابل یعنی امریکا صد ها بار از توافق نامه دوحه تخطی کرده است .

ما به ایالت متحده امریکا میگویم که توافق نامه دوحه بیشتر از ما به نفع شما است

ملت افغان «طالبان » چیزی برای از دست دادن ندارند چون شما نوزده سال تمام این ملت را سرکوب کرده کشتید و از منابع معدنی و سیاسی این کشور سود بردید .

اگر پیمان دوحه را نقض کنید شما ضرر خواهید کرد ما اسلحه های خویش را به زمین نه نهاده ایم ما در حال نبردیم این شمایید که از جنگ گریزان و شکسته اید بهتر است

حرف‌ها و مدعا های غلامان تان شما را نه فریبد کشور ما را رها کنید .





## افغانستان کې د جګړې اصلي لامل خارجيان

# او د دوی لاسپوڅي دي !

**ممتاز ج**

هغه څوک چې په افغانستان کې د خارجيانو نظامي شتون لپاره هلې ځلې کوي، هغوی د جنګ او د اشغال دوام غواړي، دوی ته افغان وژنه يو ډول سياست او تجارت ښکاري يوازې خپلو شخصي ګټو په خاطر هر ډول معاملو ته تيار دي. امريکا او ناټو شل کاله مخکې د يو غير مشروع هدف لپاره په افغانستان باندې تجاوز وکړو، په داسې حال کې چې دوی يو ځل اشتباه وکړه او په خپلو تيروتنو او خطاګانو باندې اعتراف کوي، سره له دې د اوږد مهاله جګړو او اشتباهاتو په درشل کې مجبور شول له طالبانو سره په دوحه کې د سولې په تړاو يو قانوني توافق وکړي چې لا تر اوسه پورې جريان لري، اما بيا داسې لويه اشتباه نه کوي چې په افغانستان کې جګړې ته مخه کړي، او يا د دې هڅه وکړي چې افغانستان ته خپل سرتيري راوليږي، البته سياسي او استخباراتي لاسوهنه به ترهغه پورې کوي ترڅو چې دوی خپل هدف ترلاسه کړی نه وي.

زمونږ ملت اوس په دې پوه شوی چې په افغانستان کې د جګړې اصلي عامل خارجيان او د دوی لاسپوڅي اشخاص دي، ترڅو چې مونږ خپل سياسي استقلاليت ونه لرو تر هغه به خارجيان لاس وهنه کوي او د خپلې خوښې حکومتونه به په مونږ باندې تحميلوي.



# مطمئن؛ د جهادي ادب ځلانده ستوری

حافظ نور احمد سعيد

د کب په ۴مه سهار مې چې موبايل روښانه کړ، د واټساپ په يو گروپ کې مې د اسلامي امارت د پخواني ويانـد، ليکـوال او شاعر ملا عبدالحي مطمئن صاحب د جنازې پر خبرتيا سـترگې ولگېدې. د مطمئن صاحب د جنازې او ښېلتانه خبر ډېـر غمـونکی او دردونکـی و او دا بيـا بيخـې ځـورونکې وه چـې نومـوړی د هجرت په ديار کې په پرديسۍ کې د ناروغۍ پر بسـتر پرېـووت. تر يوې مياشتنۍ سختې مريضۍ وروسته يې د ژوند پور پرې کړ او د يو مسافر او مهاجر په صفت له اصلي ټاټوبي لېرې دفن کړل شو. انا لله و انا اليه راجعون!

اروانباد مطمئن ديني عالم، خوږ ژبی نطاق، رياليست شاعر، برلاسی ليکـوال او د سـياسي او ټـولنيزو چـارو تکـړه شـناند و. مطمئن صاحب گڼ شعرونه، سياسي تحليلونه، مقـالې او کالمونـه ليکلي او په مختلفو چاپي او برېښنايي رسنيو کـې خپـاره شـوي دي. د مطمئن صاحب نظم او نثر لـه ځـانگړې سلاسـت او کيـف څخه برخمن دي. اُن د فکر او عقيدې مخالفين يـې هـم د شـعر او نثر پر خوږلت او قوت اعتراف کوي.

مطمئن صاحب چې اوبايمه لسيزه کې د کندهار د اطلاعـاتو او کلتور رئيس و، په سختو شرايطو کـې يـې پـه پاټـک ځـپلي تياره کندهار کې د ادب او فرهنگ ډيوه بله کړه، خاموش او فرار شوي پتنگان يې پـرې راټـول کـړل او د نومـوړي پـه هڅـو ادبي بنډارونه، مشاعرې او چاپي خپرونې بيا پيل شوې.

هماغه مهال چې تاريخي کندهار د جهالت او ټوپکسـالارۍ په تورتم کې غرق و، په ټول کندهار کې هيڅ يوه علمـي، ادبي او فرهنگي خپرونه نه نشرېـده. د طلـوع افغـان جريـدې او کنـدهار مجلې په دفترونـو کـې ټوپکيـانو جنگـي سـپي سـاتل، د چرسـو ډېوزې بـه تـرې پورتـه کيـدې او فرهنگـي او تعليمـي ادارې د مظلومو هيوادوالو د شکنجو او اخلاقي فساد مرکزونه وو، خـو د طالبانو اسلامي تحريک چې کندهار او گاونډې ولايتونـه لـه شر او فساد څخه خلاص کړل، په ټولو مفتوحه سيمو کې يې دولتـي، تعليمي او فرهنگي ادارې بيا ترميم او فعالې کړې.

له کلونو ځنډ وروسته د اسلامي تحريک په مرکـز کنـدهار کې يو ځل بيا راډيويي نشرات او چـاپي خپرونـې پيـل شـوې. د افغانستان د ژورناليزم د لومړنيو او موثرو ورځپاڼو او مجلو لـه جملې د طلوع افغان ورځپاڼې او کنـدهار مجلـې د چـاپ معطـل بهير بيا شروع شو. پـر کنـدهار مجلـې او طلـوع افغـان جريـدې سربيره خلافت مجله، د ارغند لـه غـاړې مهـالنۍ او..... مـنظم او پرله پسې چاپيدل او خپريدل.

د کنـدهار د هماغـه وخـت د مطبوعـاتي، ادبي او فرهنگـي بنسټونو او بهيرونو په وده او پراختيا کې د ملا امير خان متقـي، مولوي وکيل احمد متوکل، موحـوم مولـوي سـيد محمـد حقـاني، شهيد محمد حسين مستسعد او اروانبـاد مـلا عبـدالحي مطمـئن نقش بيخي بارز دی.

مرحوم مطمئن صاحب ډېر وخت د اسـلامي امـارت د ويانـد او د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د رئيس په توگه خدمت تـرسره کړ. نوموړي د يادو شويو سختو او بوختو دندو پر مهال هم شعر



او نثر ليکلو تـه وخت ورکـاوه او د کندهار د هغه وخت پـه زياترو خپرونو کې د مطمئن شعرونه او ليکنې تر سترګو کيدې.

پر افغانستان د امريکا د يرغـل وروسته د خداى بخښـلي مطمئن شعرونه او ليکنې په مستعارو نومونـو پـه عـزم، څـرک، شهامت او مورچل مجلو او بېلابيلو جريدو، ويبپاڼو او اخبـارونو کې خپريدلې. دې وروسـتيو کـې اروابـښـاد د (مـلا محمد عمر، طالبان او افغانستان) په نوم يو کتاب هم وليکه.

مطمئن له فاني او مضطربې دنيا ولاړ، فرهنګي کـورنۍ تـه يې ګڼ خواره واره شعرونه او ليکنې په ميـراث پرېښـودل. اميـد دى چې د اروابښاد د قلم د سنګر ملګري د ځوانيمرګ يار د زړه په وينو، خولو او اوښکو ليکل شوي توري راټول او په کتـابي بڼـه تر لوستونکو ورسوي.

کاش چې د جهادي ادب همدا (مطمئن) سـتورى دومـره ژر زموږ داسمان له مداره نه واى لويدلى، د مطمئن صاحب غروب او بېلتون په جهادي فرهنګي کهول کې لويه خلا رامنځتـه کړه،چې تر ډيره به د همدې تشې په ډکولو ونـه تـوانيږو!! اللـه تعـالى دې رحم پرې وکړي!

## غزل

مسـافر يمـه نګـاره نـاز مـې واخلـه
ورکـه کـړې مـې ده لاره نـاز مـې واخلـه

د شـمال د لـوړو څوکـو مسـلمانه
زه راځـم لـه کنـدهاره نـاز مـې واخلـه

مـا راوړي انعامونـه قرانـي دي
يـو بـه درکړم لـه دستاره نـاز مې واخلـه

ستا په څنګ کې يو ښامار راسره مړ کړه
لـه پنجشيره تـر تخـاره نـاز مـې واخلـه

لـه ماښامه مې په وينو کاڼي سره شول
اوس بـه ژاړم تـر سـهاره نـاز مې واخلـه

کـه همـدا سـوبه ترلاسـه مطمـئن کـړه
شي بـه خلاص لـه انتظاره نـاز مې واخلـه

اروابښاد مطمين

# بیا به جهان راپسي کوري نه به یمه

شهیدزوی

ډېر کوچنی وم، خو د روسانو د یرغل ورځې مې لږې لږې یادېږي؛ خلک ډېر زیات خفه وو؛ زه چې اوس هغه حالت رایاد کړم، نو رښتیا داده چې خلک په ډېرې زیاتې وېرې کې وو؛ د ښارونو خلکو به څه فکر کاوه ؟ خو د اطرافو خلکو خو داسې ګڼله چې افغانستان ته به ډېر زیات روسان راشي؛ ډېر ژر به د هېواد هرې سیمې ته ورسېږي؛ په کم وخت کې به ټول هېواد تر خپل تصرف لاندې راولي او بیا به په ډېر وحشت قتل عام وکړي او د هیچا ناموس به خوندي پاتې نه شي.

رادیو د حالاتو نه د خبرېدو یواځنۍ وسیله وه خو ټول کلي کې به ایله درې څلور رادیو ګانې وې؛ ټول خلک به زموږ د جومات مخې ته یوې رادیو ته راټول وو او خبرونه به یې اورېدل؛ ما لا بغدادۍ قاعده نه وه شروع کړې، د مشر نه کشر ورور به مې کله نا کله جومات ته بوتلم؛ ورور مې د رادیو لیدلو په ارمان و خو چې به دی او نور کوچنیان مازې ددې مشرانو د ډلې سره ودرېدل مشرانو کې به کوم یو شور جوړ کړ او را وبه یې شړلو.

په همدې وخت کې علاقداري خبره شوه چې خلک د جومات غاړې ته بي بي سي اوري؛ تور کرغېړن جیپ راغی او د رادیو مالک یې سره له رادیو یوړو او په اجتماعي هیئت د خبرونو اورېدلو خبره همدلته پای ته ورسېدله.

دا د خبرونو اورېدلو سره د عادي شویو خلکو لپاره ډېره ګرانه وه خو چاره نه وه .

دا هغه وخت و چې ایران ته د مزدورۍ لپاره زموږ ځوانانو دتللو لړۍ نوې نوې پیل شوی وه؛ هر څوک به چې ایران ته تللو، نو خلکو به پرې رادیوګانې راغوښتې؛ زموږ والد صیب رحمه الله تعالی په همدې ورځو کې یو سانیو ټیپ واخیست او په کور کې مو د خبرونو اورېدلو لړۍ پیل شوه، خو چې کوچنیان وو نو په څه نه پوهېدو؛ د هجرت نه پس چې څلورم او پنځمو ټولګیو ته ورسېدو، بیا په خبرونو شننو او سیاسي خبرو پوهېدلو او ښه په شوق به مو دا هرڅه اورېدل، خو چې د دیني علومو د زده کړې لپاره مدرسو ته ووتو او له کور نه مسافر شولو، نو د رادیو سره مو تړاو د جمعې تر شپې محدود او څوکاله پس چې له کوره ډېر لرې شو، نو مو دا محدوده رابطه هم پرې شوه ځکه چې زموږ د طالبۍ په زمانه کې په مدرسو کې د رادیو لرلو تصور هم نه شو کېدای.

زموږ فراغت په داسې وخت کې وشو چې خوشبختانه اسلامي امارت قایم شوی و او پر هېواد سوچه اسلامي نظام حاکم و، نو الله تعالی راته پکې د فراغت په هماغو ړومبو ورځو کې د تدریس تر څنګ د قلم میدان کې هم د خدمت توفیق راکړ او د فرهنګي او مطبوعاتي کارونو سره وصل شوم؛ نو طبعي وه چې په کومو ژبو پوهېدم په فارغو وختونو کې به مې د رادیو له لارې د هغو ژبو نشرات تعقیبول چې د امارت د مشرانو مرکې به موږ ته ډېرې مهمې وې او د هر یو په ښې مرکې به سخت خوشالېدو او که کوم کمزوری ټکی به پکې و، نو پرې به خفه وو.

ماچې په ړومبي ځل له بي بي سي راديو سره د ملاعبدالحی مطمئن مرکه واورېده، نو ترې زيات متأثر شوم؛ دا مرکه د بشر د حقوقو په اړه وه چې مطمئن صيب پکې په ډېر جرأت غږېدلو؛ د مخالفينو د اتهاماتو يې ډېر ښه جوابونه ويل او خپله مدعی يې په ډېر ښه شان په دلايلو روښانه کوله. ما چې د وکيل احمد متوکل کومه ړومبۍ مرکه واورېده، نو لوړ استعداد يې ډېرحيران کړم. د دوی دواړو ليدل مې ارمان و، آخوندزاده صيب مې کابل کې وليد خو زه چې کندهار ته ايله يو ځل تللی وم، مطمئن صيب چرته تللی و نو ورسره مې ليدل ونه شول.

د سقوط نه پس چې د دښمن پر ضد جهادي عمليات پيل؛ ورو ورو منظم کېدل او د اميرالمؤمنين ملا عمر مجاهد رحمه الله د لارښوونې سره سم کمېسيونونه فعالېدل، نو ما او مجاهد صيب ته په فرهنگي کمېسيون کې يو شمېر بهرنيو رسنيو ته د خبر لېږلو او د آينده تاريخ لپاره په کتاب کې ددې پېښو د ثبتولو مسئوليت راکړل شو.

يو مازيگر چې په يوې خوارې کوټه کې کمپيوټر ته ناست وم، د لوړ قد قامت لرونکی يوښکلی ځوان د ايمل صيب سره يوځای رانوت؛ دا ځوان مې له دې وړاندې نه و ليدلی، خو چې يې خبرې پيل کړې، نو ومې پېژندلو چې ملا عبدالحی مطمئن دی. خو حيران شوم؛ ما يې چې ړومبۍ مرکه اورېدلی وه، ماته يې د ښه جرأت او قوي استدلال نه داسې معلومېده چې عمر به يې د ۴۰ کلونو نه زيات وي او وړاندې به يې کلونه کلونه د کوم جهادي تنظيم په فرهنگي چارو کې کار کړی وي، خو چې مې وليد نو پوه شوم چې د اسلامي امارت د وياند کېدلو په ړومبو ورځو کې به يې عمر ايله د شل کلونو په شاوخوا کې و.

هغه سره مې پدې ړومبي مجلس کې ايله تعارف وشو، هغه مهال موږ ايله يوه څرک مجله درلودله؛ مسئول يې عزيزي صاحب و او د ټولو مقالو د ليکلو او کمپوز چارې يې د نبيل صيب پر غاړه وې، خو مطمئن صيب په ما د مجلې د کمپيوټر کار گومان وکړ، نو د کوټې نه د وتلو پر مهال يې د مجلې لپاره په ۴ مخونو کې ليکلی يو مضمون راکړ او ووت.

له دې بعد بيا په يوې اداري کې ملگرتيا وه؛ ليدل کتل وو، ناستې او مجلسونه وو چې به مو دده له خبرو او ليکنو ډېر څه زده کول؛ موږ تمه لرله لا خو ځوانان يو؛ ډېر کارونه را له غاړې دي؛ د مطمئن صيب سره به مو ملگرتيا ډېره اوږده او ډېر څه به ترې زده کړو خو آه! هغه رانه ځو ورځې وړاندې مرگي واخيست او موږ يې ارمانجن پرېښودو.

زه نه شاعر او اديب يم او نه هم کوم تکړه ليکوال.

لوی شاعران او اديبان ملگري به د مطمئن رحمه الله د ادب، ادبي خدمتونو، پُرمحتوا، پرمعنی، نازک خياله او د ځانگړي سبک لرونکي شعر په اړه ډېر څه وليکي.



او تکړه ليکوال ملگري به يې د سياسي سترو خدمتونو او ليکنو په اړه ښې مقالې وليکي.

يواځې ددې لپاره چې د مشرانو حکم پر ځای او د مطمئن صيب سره د ملگرتيا په لار کې د جفا مرتکب نه شم، نو په اړه يې ځو ماتې گوډې خبرې ليکم.

څومره چې موږ مطمئن رحمه الله پېژانده، موږ او هغه ملگري چې له کلونو کلونو يې ورسره نېږدې او جوړې اړيکې وې، ټولو دده په ژوند کې تل پدې اعتراف کاوه، چې هغه ستر علمي، سياسي او ادبي شخصيت و؛ خو د خپل دغه هر اړخيز لوړوالی نه يې تر پايه د لوی منصب، لويو مشرانو ته د ځان نېږدې کولو، د لا زيات شهرت او د نورو مادي گټو لپاره کار ندی اخستی؛ نه يې دا مزاج و او نه پدې چلونو پوهېدلو.

انسان و پدې مادي نړۍ کې يې چې ژوند کولو، نو د نورو انسانانو په څېر ده هم مادي وسايلو ته اړتيا لرله، بلکې له نورو ملگرو په پرتله به يې اړتيا زياته وه او زياتره وختونو کې به پور وړی

و، خو کیفیت بـه یـې د داسـې اسـتغنی و؛ تابـه ویـل چـې اړتیـا او احتیاج بیخي نه پېـژني او هـــــر وخـت لـه ځانـــــه سره ملیونونـه روپۍ لري.

ربښتیا دا ده چې مطمئن رحمه الله تعالی د وطن او ملـت سره ډېره زیاته مینه درلودله؛ امارت او د امارت عـالي اهـدافو تـه سـخت ژمن و او پرې سخت دردېدلوئ، نو په صف کې دننه به کـه د چالـه لوري کوم داسې حرکت رامخې ته شو چې دده پـه گومـان بـه تـرې دې عالي اهدافو تـه تـاوان رسـېدلو، نـو بیـا بـه سـاکت نشـو پـاتې کېدلی؛ سکوت به یې جرم گڼلو، نور به د خپل ځان په اړه د عواقبـو نه بیخي بې پروا و او دې ته به یې نه کتل چې څوک بـه خوشـاله او څوک خفه شي.

زه دا نه وایم چې مطمئن صیب معصوم و؛ نه دا وایم چې څـه بې ویلي یا لیکلي دي پکې هیڅ د اعتراض وړ ځای نشـته؛ انسـان و کمی زیاتی به ورنه شوی وي چې ورته د الله تعالی نه ښښنه غواړو.

خو باید پدې حقیقت اعتراف وکړو چې د یـو نظـام د پایښـت او پرمختگ لپاره په نظام کې دننه د داسې حقپالو، زړورو او ژبـورو قلموالو اړتیا وي چې له چاسره د شخصي دښمنۍ ، حسد او عقدو پاللو نه پورته په مناسب او گټور وخت کې د اصلاح په نیت حقـایق ښـکاره کـړي؛ او پـدې اړه د خـوف ښـکار نـه شي او د یـو ملامـت کونکي د ملامتیا پروا ونه لري.

خبره به ډېره نه اوږدوو، خو که د خلفاء راشدینو زمانې تـه سر ورښکاره کړو نو وینو چې په سترو سترو اجتماعاتو کې مسـلمانانو د اصلاح په نیت پخپله په خلفاؤ سالم انتقادونه کړي دي او هم یـې د والیانو په اړه په ډېر جرأت خلفاو ته شکایتونه رالېږلي او خلک یې ترې خبر کړیدي.

که په خپل صف او نظام کې دچـا یـو داسـې کـار وینـو چـې عالي اهدافو، صف یا نظام ته ترې تاوان رسېږي او ښه پدې پوهېږو چې د یو مشر یا دوه مشرانو سره یې رایادول گټه نـه کـوي، تـر څـو چې وربانديې په مناسبه طریقه څه ونه لیکل شي او دا مـو هـم یقـین وي چې درانه مشران مو په داسې لیکلو نه ناراضه کېـږي، بیـا هـم د احتیاط په سلو جامو کې رانغښتل شوي داسې لیکنه نه کوو او وایو چې ځان له کار ولې گورې؟ داسې نه څوک پې خپه شي.

بس دا یواځې لیونی مطمئن و چې کښتۍ یې تولې سوځولې وې او په خپل فکر کې چې ورته څه حق ښکارېدل هغه یې لیکل.

دده د انداز، لهجې او طریقې سره اختلاف کېدای شي، خـو که نفس سالم انتقاد ته وکتل شي نو شاید ټول مـشران اوکشـران بـه اعتراف وکړي چې ددې لوی میدان شهسوار همدی و؛ همدی هغـه بې جوړې ملغلره وه چې ترې ډېر بې وخته محروم شو؛ بیا که پسې ډېر لټون وکړو په گرانه به د داسې ملغلرې په موندلو وتوانېږو.

ارمان به وکـړې وخـت به تېروي

بیابه جهان راپسې گورې نه به یمه



## دست اوردهای جمهوریت در افغانستان

۱ـ تجاوزات جنسی
۲ـ قاچاق
۳ـ اختلاط مرد وزن نامحرم
۴ـ زنا و شراب خوري
۵ـ رشوت و اختلاس
۶ـ مافیایې دولتی
۷ـ فعالیهای عیسوي
۸ـ مهارتهای غلامي
۹ـ دستیابی به سریالهای هندي
۱۰ـ قتل و سرقت اموال مردم
۱۱ـ غصب زمین
۱۲ـ واسطه و رشوت در تقرر
۱۳ـ فحشاء رسمي در ارگ

# ارگ نشینان در هراس از صلح !

# وملت خشنود آن

نویسنده : ش ـ ل

امروز صحبت پیرامون صلح در «افغانستان »حد اقل بیشتر از هر زمان دیگر ورد زبان ها و سرخط رسانه های داخلی جهانی شده است .

جنگ در کشور ما بیش از چهار دهه را در بر گرفته قربانی آن ملت مظلوم ما بود است .

ونیاز است که دروازه جنگ در کشور بسته شود جنگی که آغازگرش افغان ها نبوده اند؛ بلی قبل از اشغال امریکا « روس ها »یوغ اشغال شان را بر شانه های ملت ما تحمیل کرده نظام ناکار کمونستی را بر عقاید والای دینی ملت غیور افغان ترجیح داده ملت مسلمان و متدین ما را مجبور به مقاومت ودفاع از ارزش های والای شان کردند، مقاومت و مجاهده ملت افغان اتحاد روس ها در هم وبرهم کرده و روسها را برای سالیان دراز از صحن سیاست بدور کردند.

دراین اواخر حرف از صلح زیاد است اما جز «امارت اسلامی افغانستان » دیگر هیچ کسی هیچ گروهی از چگونگی جنگ تحمیلی در افغانستان از سوی امریکای اشغالگر حرفی نه زدندو ؛ نظام ناکار وغیر اسلامی و غیر اخلاقی شان را تقبیح نکردند چرا؛ چون اکثر یا همکاران امریکا بوده اند ویا همیار عقیدوی شان .

کسی جرئت نکرد تا سد راه ظلم و وحشت اشغالگران «امریکایی» شوند هیچ قوت جز طالبان علیه اشغال امریکا قیام نکردند چرا؛ چون بیشتر احزاب در اشغال امریکا همکار شان شدند منافع شخصی خویش را بر منافع ملی و اسلامی ترجیح داده کشور ما را سالیان دراز از صلح امنیت و انکشافات ساینسی بی بهره کردند همین ها در زبان حامی صلح و درحقیقت مانع بزرگ صلح در کشور اند.

کسانی که نوزده سال تمام را علیه ملت ما جنگیدند و خواهان تشدید جنگ از سوی امریکا در کشور بودند امروز باید از صلح هراس داشته باند چرا ؛

چون ! قبل از اشغال افغانستان توسط امریکا اشخاص واحزاب مذکور یا بیرون از کشور بودند و یا هم در دایره های مرزی کشور

کسانی که از برکت اشغال امریکا ملیادر شدند و حرف از خانه های vip در دوبی و سنگاپور را می زنند باید از صلح هراس داشته باشند،چون صلح به مثابه از بین رفتن آرمان های شان است .

اما صلح نیاز مبرم و ضروریت ملت عزیز و درد دیده ما است ملتی که چهل سال تمام اسیر جنگ های تحمیلی و بدبختی ها، هجرت ها و خانمانسوزی ها اند بلی صلح نیاز مادری ایست که در جنگ تحملی امریکا چهار پسر جوان خود را از دست داده است .

صلح نیاز آنه بیوه زن این میهن است که جنگ تحملی مسئول خانه و دلبندش را ازش گرفته است .

اما صلح برای بعضی ها به مثابه زهر شرین است که طعمش خوب انجامش به زدودن آزمان های شان می انجامد

ارگ نشینان ! باید بدانند که بهانه های پوچ شان سدی در راه صلح کرده نمی توانند اینها باید بدانند که حامی و بادار شان دیگر از جنگ متجاوزانه اش خسته شده و به پیمان دوحه پناه برده است شما باید بپذیرد و صلح را قبول کنید و گرنه انجام شوم غلامان پیشن نصیب تان خواهد بود

وما توفیقی الا بالله.







# «مطمئن» او عبد الحی

لطف الله خیرخواه

کله به چې د دریځ څښتن و..کله بـه چـې د جهـاد استازی و..کله به چې د یو فکر تـرجمان و..کلـه بـه چـې د "امیرالمـومنین" ویاند و..او کله به چې په مطبوعاتي څغل کې د مجاهـد خوځښـت مدافع و.."مطمین" و.

کله به یې چې په ادبي نزاکتونو سمباله لیکوالي کوله..کلـه بـه یې چې په منظومه ژبه او نازکخیالۍ چغه وهله..کله به یـې چـې د امت د بچیو د حالت انځور ویست..کله به یې چې په تلمیحاتو کې تاریخي پېښې د حساب سجل ته سپارلې.."مطمین" و.

کله به چې ورته اړتیا وه..کله به یې چې نقد کاوه..کله به یې چې ژبغړاند استدلال کاوه..کلـه بـه یـې چـې د اصـلاحاتو غوښـتنه کوله..کلـه بـه یـې چـې د وخـت د نزاکتونـو مراعـات تـه توجـه اړوله..کله به یې چې د مجاهد حرکت یون څاره..کله بـه یـې چـې پرتله کوله..کله به یـې چـې ایمـان او ناځوانـه موقـف سره مخـامخ شول..کله به یې چې ارزښت سوال سره مخامخ شو..او کله به چې د جلال پر غر هسک شو.."مطمین" و.

حجره کې به عبدالحی و. د طـالبۍ کیسـو او مسـتیو کـې بـه عبدالحی و. د ژمي پیتاوي او د اوړي نایل ته عبدالحی و. خوشحال، ظریـف، بـې تکلفـه، قـانع، سـاده مزاجـه، خنـدان او بـې مطلبـه عبدالحی.. بې ځانه، بې ریا، بـې امتیـازه، بـې برخـې او بـې شـهرته عبدالحی. د کلي د ظریفو خلکو یار، د چم د بشاشو ځوانانو مـل، د ګاونډ د بې رخې خلکو مجلسي. بې نومـه ورشـه او بـې نومـه تـرې ووځه. زموږ د چم پاچا صاحب یې تر اخره نوم ونـه پېژانـد. هغـه پوه و، چې دا ځانګړی سړی یو څوک دی، مګر چې وفـات شـو او نوم یې اعـلان شـو. پاچـا صـاحب دهقـان او غریبکـار دی، خـو د عبدالحی د قضاء مازیګري او سکښي ماښام اشنا..د ټوکـو ټکـالو او ظریفـۍ ملګری..کلـه د لارې پـر سر یـوه خولـه خنـدا او ټوکـه کړې..کله د پاچا صاحب د دېرې د غټې شوې د سیوري لاندې..پاچا صاحب به وخندل، سړی خو نه ښيې، چې غرق مو نه کړئ..

کله چې د عبدالحی له وفاته خبر شو، دهقان او غریبکار پاچا صاحب اودس تازه کړ او پـه دوه رکعتـه لمانځـه یـې پروردګـار تـه لاسونه لپه کړل..خدایه! زما نا پېژانده یار ته ښننه وکړه!

## مبتکر ذهنیت

مطمین ذهین سړی و او د ابتکار شوقي و. هر ډګر کـې یـې د نوښت غوښتنه کوله. جهادي ژورنالزم یې په نـوو نزاکتونـو سـمبال غوښت. کوښښ یې و، چې هر څه په نـوي رنـګ وکـړي. ذوقونـه وپالي او له شته وسایلو ښه ظریف کار واخلي. په همدې موخـه یـې «اذان» مجلـه پیـل کـړه، خـو د غریـب مـلا «اذان» و، چـا وانـه وریډ..کوښښ یې وکړ، چې پـه «ځلانـد» فرهنګـي تنـده خړوبـه کړي، خو بیا هم د بې وسۍ تیارې زورورې شوې.

کله چې شهید منصور صاحب په نوښتونو پیل وکړ، ده هم یوه طرح وړاندې کړه. منظور هم شوه، خو د منصـور صـاحب شـهادت هر څه لاهو کړل. ده غوښتل، چې یو دارالمعلمین تاسیس کـړي او د شرعیاتو او ژبو څانګې په کې په ښه تخصصي بڼه فعالې کړي، خو د مشر شهادت نیمه خوا کړ.

یو وخت یې ځینو ځوانو علمي ملګرو سره د ځینـو مسلسـلو علمي او فکري مجالسو اهتمام وکړ. دی سره له دې، چې په عامه او ظاهري بڼه بې پروا سړی معلومېد، خو چې جدي به شـو، د درېـوو علمي کسانو کار یې کاوه. یو مجلس تـه یـې د نـړۍوال قـانون پـر موضوع په یوه اوونۍ کې شپېته پینځه شپېته مخه څېړنه لیکلې وه. بیا کتو ته هفتـه کـې سـل مخـه هـم لیکـل کېـدی شي، خـو دا چـې موضوع دې وړاندې کولو ته تیاره شي، دا سخته بریښي.

د سید سلیمان ندوي صاحب «الرسـالة المحمدیـة» یـې پـه لنـډ وخت کې په خورا ښه او سمه ژبه ژباړلې و. تېر کـال زه او دی پـه یوه مدرسه کې پر تدریس بوخت وو، له ډېر ښه تیاري سره مدرسې ته حاضرېد. د مدرسې د ادارې او د ده د ملګرو دا توقع نه وه، چـې

دی به تمام کال درس وکړی شي، خو په ډېر جدیت یې حاضري وکړه او د خپلې موضوع په اړه یې خورا ښه چېپټر هم تیار کړ.

## زړور حرکتي

ما ته په روان جهادي بهیر کې په عین الیقین ثابته شوه، چې زړورتیا نه ډارېدو ته نه وایي، بلکې ډار ته ټینګېدل د زړورتیا ښه تعریف دی. مطمین صاحب تر اخره بریده ترهنده انسان و، مګر د دین دفاع کې یې ډېرې زاره چاودې ته زړه نیوه. هره ستونزه او هر ډول وېره یې پر ځان ومنله، خو له کړې وعدې وروسته نه شو. پر کوم فکر او عقیده چې مهاجر شوی و، له ټکرونو او کړاوونو سره سره یې د ساتلو کوښښ وکړ.

د زړورتیا یو صورت پر ځان نقد کول دي. مطمین صاحب پر ځان د نقد کولو جرئت درلود. د بل چا نقد رغملو کې ممکن هغسې نه و، خو کله یې، چې ځان ته ګوته نیوله، نو خپله نیمګړتیا یې په متانت یادولې شوه. د ده وروستی کتاب ښایي د ځان د نقد یوه بېنه وي، ځکه چې ده هر څه لیکل، بېرته پر همده تمامېدل.

د دې جهاد د اوایلو ویاندي اسانه نه وه. هغه ورځې زما یادېږي، چې محتاطو خلکو څه ډول له هغه چا څنګ کاوه، چې په جهاد مشتبه وو، مګر ده د جهاد غږ داسې غوږونو ته رساوه، چې اورېدلو ته یې تیار نه وو. د نړۍ مطبوعاتو د مجاهد غږ نه اورېد؛ ځکه یې نه اورېد، چې بیا یې نړۍ هم اوري. د ویاندویۍ لپاره وسایل ساتل او بیا په مسلسل حرکت کې اوسېدل، په ګنو امنیتي چیکنګ ځایونو اوښتل راوښتل د هغه زړور کار دی، چې د ډار زور منلی شي.

کله چې د امیرالمومنین د وفات اعلان وشو او نړۍ له شته مسایلو او انشعابي اشخاصو استفاده کوله، دا مهال دی ډېر ګوښه و. ډېر فعال نه و، کوښښ یې کاوه، پر کوم فکري بنسټ کار وکړي او پر مخ لاړ شي. دغه مهال داسې چا ته اړتیا وه، چې مطبوعاتو ته ورمخامخ شي. نه د چا له ملامتیا ووېرېږي او نه امنیتي ملحوظات مراعات کړي. په ډېر متانت درووت، زړرو وغږېد، د انشعابیانو روان یې مات کړ. هغه مشران مطبوعاتیان، چې په ډېر منفي ډول یې ژبه او قلم خوځاوه، د ده په مرکو یې خبرې بدلې کړې. ډېر ښه رواني ګوزارونه یې وکړل، انشعابیان او توظیف شوي ژورنالیستان یې یخ کېنول.

ده ته د مرګ او ستونزو پېښولو رارسېدلي ګواښونه هم سخت وو، وېروونکي وو، خو عملا متوجه ګواښونه تر دې څو کرت سخت او ستونزمن وو، دی یې سخت مصروف کړی و، سختو امنیتي تکتیکونو کې اوسېد، خو زړه یې ونیو، روان یې مات نه کړ او نېغ ودرېد.

په ډېر مهم او سخت وخت کې یې ډېر لرې سفرونه وکړل. په ډېر امنیتي او ایسار وضعیت کې یې د جهاد استازیتوب وکړ او موقف یې روښانه کړ. د ده د سفر یو ملګري د فاتحې پر ورځ راته وویل، چې ده ته به مقابل لوري «مستر کیو» ویل. ده به مجلس کې داسې پوښتنې مطرح کولې، چې هغوی به هېڅ حساب ورته نه و سنجولی. کله به هغوی راته ویل، که د یو څو دقیقو لپاره «مستر کیو» ویستلی شي، زموږ کار کېږي، خو دی، چې د مقابل لوري هرې خبرې ته متوجه و او هره خبره یې له شالید او تاثیراتو سره فلټر کوله، هېڅ ممکن نه و، چې په کومه بهانه اغفال شي. دې سفرونو کې لکه بهر ته د قاچاقي خلکو د تلونکو په څېر وځورېد، خو په دومره توپیر، چې هغوی د خېټې غم اخیستي او د جهاد مسوولیت پر اوږو بار کړی. ورک ورک پر وطنونو اوړي راوړي، ځان هدف ته رسوي او بېرته منزل رسېږي.

د زړوتیا یو صورت قناعت او اعتراف دی. یو وخت یې د وضعي قوانینو په اړه د استاد عبدالهادي مجاهد نظریات سخت ردول، نیوکې یې پرې کولې. کله چې دی خپله د دې قوانینو طالب شو، مطالعه یې وکړه او بالاخره یې حاشیوي تدریس وکړ، په خلاصو تنیو یې ویل، چې استاد رښتیا وایي. ، اوس رامعلومه شوه، چې د دوی په اړه په همدومره وېروونکې ژبه غږېدل په کار دي. د ا خلک د علم او قانون په نوم انسان د خدای جل جلاله له بنده‌ګۍ وباسي!

د زړورتیا بل صورت یې دا و، چې د اسلام او کفر دې جګړه کې یې مخالف څه چې بې اعتناء سرې پر خپل دریځ پوهاوه. کوښښ یې و، چې داسې چا سره اړیکه او ملګرتیا ونه لري، چې هغه یوازې دا نه، چې د جهاد مخالف وي، بلکې په اعتنایۍ یا مقابل صف کې وي یا روان حالت ورته مهم نه وي.

هغه خلک یې د استدلال په ډېره بې رحمه څېړه وهل، چې په بهانو او ملامتیا جویۍ یې د جهاد ضد خبرې کولې.

د مطمین صاحب په اړه ډېر څه او ډېر ژور ویل کېدی شي، چې دا یوه مقاله یې ځای نه دی. د ده فکر او د شعر ژبه ځانګړی باب دی، چې په خپل وخت کې به پرې څه ولیکو، ان شاءالله!

# مولوي عبدالحي مطمئن رحمه الله

## د معاصر تاریخ د شعر او نثر ځواکمن قلموال

گلاب سهار شونډې موسکی کړې غوټۍ وغوړوي
خو مازیگر چې سیلۍ راشي بیا تالا غونډې وي

لیکنه: مفتي حبیب الله قاسمي

### درونډ او خوږ ملگری مطمئن صاحب د ابدي ژوند پر لور

رښتیا هم یواځې یو د خدای پاک ذات دی چې تل به پاتې وي او نور د ځمکې د مخ ټومره انسانان چې دي، هغه به ټول له دې دنیاگۍ سره خدای پاماني کوي، د شنبې ورځ وه، د ۲۰۲۱م کال د جنوري ۲۳مه او د ۱۴۴۲هـ جمادی الثاني ۹مه د / ۱۳۹۹ل د دلوې ۴مه نېټه وه او سهار مهال مې مدرسې ته د تگ تابیا نیوله چې مشر زوی مې طالب العلم محمد زاهد راته د درانه او خواږه ملگري مولوي عبدالحی مطمئن رحمه الله ــــ چې موږ به خپلواک صاحب باله ــــ د مرگ په ستره او غمجنه پېښه خبر کړم. د خبر په اوریدو مې له خولې د (انا لله وانا الیه راجعون) توري ووتل او دې خبر سخت ټکان راکړ او زیات یې وځورولم.

هغه ښه تازه او روغ رمټ و او هېڅ دا گومان نه کاوه چې دغه ځوان شاعر او شوخ قلموال به د ټو ورځو میلمه وي او له موږ به داسې ژر کډه کیږي، د نوموړي په مرگ مې ذهن ماضي ته ولاړ او هغه هیلې یو په بل پسې مختته راغلې چې موږ په نوموړي پسې په علمي، مطبوعاتي او سیاسي ډگرونو کې تړلې وې او هغه ټولې د نوموړي له مرگ سره خاورې ایرې شوې.

### کورنۍ او زوکړه

څه د پاسه څلوېښت کاله د مخه دغه خوږ شاعر او غوره نثر لیکونکی لیکوال عالم له خپل پلرني کلي لبرې د هلمند (نادعلي) ولسوالي په خوشال کلي کې د علم او علماو په مشهوره کورنۍ کې د نومیالي مدرس عالم شهید مولوي صاحب محمد انور حمه الله کره زېږیدلی و.

د دوی کورنۍ له پخوا څخه د علم او علماو کورنۍ ده ، د خپلواک صاحب دوه کاکاگان هر یو مرحوم مولوي صاحب محمد سرور رحمه الله او مرحوم مولوي صاحب محمد نظر رحمه الله هم مدرس ملایان وو او دغه کشر تره یې د اکوړي له دارالعلوم حقانیه څخه پگړۍ تړلې وه، له خپل ورور او د خپلواک رحمه الله له درانه پلار سره یوځای هلمند ته د تدریس لپاره تللی و، نیکه یې مولوي صاحب محمد اکبر رحمه الله هم مدرس عالم و، د خپلواک پلرنی کلی د غزني (قرباغ) ولسوالۍ د شیرخان کلی و او په قام خروټی و.

پښتانه متل کا : ((خاني پخپل کلي او ملایي په بل کلي ))
دغه د سرو زرو متل چې له اوږدې تجربې وروسته هر چا ویلی ډیر ښه یې ویلی او ریښتونی ختلی، ځکه هغه عالمان په علمي کړیو او تدریسي ډگر کې ځلیدلي او پرمخ تللي چې تدریسونه یې له خپل کلي لېرې بل ځای کړي، ځکه خپل کلي کې تربگنۍ،سیالۍ او د پولې او پټي یو عالم ستونزو یې د تدریس او مقبولیت مخه نیولې او ډب کړې ده، ځکه خو د خپلواک مرحوم درونډ پلار له خپل پلرني کلي ډیر لېرې د هلمند نادعلي ولسوالۍ خوشال کلي ته د تدریس په موخه تللی و او هلته یې ښه تدریسي حلقه لرله او نوموړی ښه مدرس عالم او ښه ژبه ور خطیب و.

د خپلواک مشر ورور شیخ الحدیث مولوي صاحب غلام رسول حفظه الله هم ښه مدرس عالم دی او په کال ۱۴۱۴هـ کې د پېښور صدر امداد العلوم مدرسه کې په شیخ الحدیث شهید مولوي صاحب حسن جان رحمه الله یې پګړۍ تړلې او دا مهال د پکتیکا ولایت مرکز ښرنې کې د محمد خیلو مصباح العلوم مدرسه کې د حدیثو لویه دوره درس کوي او د تدریس ترڅنګ د ښه قلم څښتن هم دی ، زموږ د درانه استاد شیخ الاسلام مفتي محمدتقی عثماني حفظه الله د سنن ترمذي اردو شرحې ((درس ترمذي)) لنډیز یې عربي ته ژباړلی او دوه ټوکه یې تازه له پېښوره چاپ شوي...

خپلواک مرحوم له خپله شهیده پلاره درې کلن یتیم پاتې و، پلار یې روسانو شهید کړی و، نوموړی د خپل یتیم توب او محرومیت داستان په خواږه نثر په خپل ارزښتناک او نادریز کتاب (( ملا محمد عمر،طالبان او افغانستان )) ۷م مخ کې داسې کوي:

((عمر مې د دریو او څلورو کلونو تر مینځ و، چې کمونیستانو د غوایي د اوومې خونړۍ کودتا وکړه، د ((خاد)) بریتورو اسلام پالي نیول ، یوه ورځ څو بدمخو زموږ د جونګړې دروازه هم وډبوله ، پلار مې له کوره ور ووت ؛خو بیا کله هم خپل کور ته را دننه نشو او نه مو بیا تر ننه سترګې پرې ولګیدې، کال وروسته دومره پوهیدم چې یو مهربانه سیوری مې له سره پورته شوی. په کور دننه غربت ساړه نغري او زما زړو جامو هم دا ګواهي ویله چې زه نور یتیم یم ، ماته نور هر بریتور د پلار قاتل ښکاریده ..... هغه (پلار ) نور د بې وسۍ په حالت کې په تړلیو لاسونو د یوې کلیمې او عقیدې په تور د سټالین سیاستونو وژلی و ؛ خو موږ لاهم د هغه د ژوند په تږې تمه ناست وو ..... د لوږو او نازونو عمر مو د اور په لمبو د الوتکو په بمبار او وژنو کې تېریده .... موږ په دې وروکتوب کې په وینو لړلي جسدونه او بمبار شوي کورونه هر وخت لیدل . ))

### زده کړه او د ملایي پګړۍ

د مطمئن صاحب مرحوم ډېره روزنه او پالنه کشر ـ تره مرحوم مولوي صاحب محمد نظر رحمه الله کړې وه ،او د نوموړي په لارښوونه په درسونو پسې راوتلی و، نوموړي څه درسونه د وزیر ستان د (زیړي نور) په ضیاء المدارس کې ویلي وو او بیا د کوټې (شیخ مانده) کې یې له مولوي صاحب علم ګل مرحوم څخه هم زده کړې وکړې او هم د غبرګي اخندزاده صاحب مرحوم په درس کې هستیدلی دی.

افغانستان باندې د امریکانو له یرغل وروسته پاکستان په ډېره بده ورځ هجرت وکړ او دلته له ګڼو ستونزو سره سره لویه دوره یې د پېښور صدر امدادیه مدرسه کې کړې وه او د ملایي پګړۍ په ترینګلو سیاسي حالاتو کې په شیخ الحدیث شهید مولوي حسن جان مرحوم په ۲۰۰۷م تړلې وه.

### خپلواک مرحوم اسلامي امارت د رسمي ویاند په توګه

نوموړی په کویټه کې په زده کړو بوخت و چې په دې کې کندهار کې د طالبانو اسلامي غورځنګ څرک وواهه او نوموړی کندهار کې د اطلاعاتو اوکلتور رئیس وټاکل شو او هم د اسلامي امارت رسمي ویاند شو، د امیر المومنین سره یې نژدې ناسته پاسته ډېره شوه، دغه مسئولیت نوموړی د افغانستان او نړۍ په کچه له سیاسي جریاناتو سره بلد کړ او د ښې تجربې خاوند یې وګرځاوه او د نړۍ په کچه یې له ډېرو مشرانو او سیاستوالو سره ناسته پاسته وکړه، ډېر څه یې ولیدل او واوریدل او نوموړی یې په ژورنالستۍ او د نړیوالو اړیکو په چارو کې ښه بلد کړ .

د امریکا له یرغل وروسته یې که څه هم د ژوند وروستي شل کلونه د رسنیو او میډیا له سکرینه ګوښه تېر کړل؛ خو د پردې ترشا یې د نړۍ سیاسي وضعیت او ځانګړې ډول د افغانستان سیاسي وضعه له نژدې څارله او د اړتیا پرمهال یې د مشرانو په مشوره مرکو ته حاضر شوی او هم د امارت د ویاند په توګه په سخت وخت کې غږیدلی .

د ژوند وروستني شل کلونه یې ډېر سترې او ستومانه تېر کړل، لوړې ژورې سرې تودې یې که څه هم ولیدې؛ خو له دې هر څه سره سره یې د طالبانو اسلامي غورځنګ لاره پرې نه ښودله او مسیر یې بدل نه کړ.

### اوږده مرکوني ناروغي او مړینه

هغه د ۲۰۲۰ دسمبر میاشتې په ۲۹مه په روغتون کې بستر شو او د ۲۰۲۱م کال د جنوري تر ۲۳مه نېټه د حیات آباد نارت ویسټ روغتون نژدې یوه میاشت بستر و او د سږو له ناروغۍ کړېده او نژدې ټوله موده کې په اکسیجن وپایېده او د ژوند وروستۍ ورځو کې له خبرو ولوید او بې سده و تردې چې د شنبې شپه ناوخته یې ساه ورکړه . انا لله وا نا الیه راجعون .

بیا د شنبې ورځ په دوه بجې د پېښور بورډ تاج اباد کې یې د افغانانو هدیره جنازه ځای کې جنازه وشوه او بیا همدې هدیره کې په ډېر درناوي

او د ملگرو په ملتیا او بدرگه خاورو ته وسپارل شو او داسې په منډه یې له موږه رخصت واخېست چې ایله پنځه څلوېښت کلن به و:

هغه زیات مستغني انسان و د صریح او ښکاره دریځ څښتن و، د طالبانو د اسلامي تحریک او هم اسلامي امارت د مرگ تر ورځې پورې وفادار انسان و او د دې غورځنگ د لوړو او ژورو ملگری و، په زړه یې امبار امبار گیلې یووړې ، زړه یې ډېر څه کول غوښتل او هغه څه چې ده غوښتل، نه به ترسره کېدل نو سخت زیات به ورته ځوریده.

ما یې د قبر له پاسه تلاوت او څو خبرې هم د ملگرو په غوښتنه وکړې. رښتیا هم دغه ورځ ډېره له غم ډکه ورځ وه .

خپلواک مرحوم مې له تېرو دیرشو کلونو راهیسې پېژانده، په لومړي ځل مې کندهار کې هغه مهال ولیده چې زه له کوره د زده کړو لپاره کراچۍ ته روان وم له ده سره مې د اطلاعات او کلتور ریاست کې شپه وکړه، هغه مهال د ادارې مشر مولوي سید محمد حقاني مرحوم و ، کابل ته د نوموړي له تگ وروسته د همدې ریاست مشر- وټاکل شو ، دوهم ځل مې هغه مهال ولیده چې موږ له کابله د علماوو له لوی پلاوي سره کندهار ته ورغلي و.

**خپلواک مرحوم ستر فکور شخصیت**

خپلواک مرحوم لوی فکور انسان او د لوړ استعداد خاوند و او خدای ډېرې ورتیاوې ورکړې وې ، هغه داسې ستر شخصیت و چې کوچني کېدل او فشار (press) یې نه زغمل او هم یې نه منل؛ له نوموړي سره مو د اشنایي مزي هغه وخت ټینگ شول چې کله د ۲۰۰۷م کال پیل میاشتو کې زما د درانه پلار مولوي صاحب رحیم الله زرمتي رحمه الله چې د فروري ۷مه وفات شوی و او نوموړي له گران ورور مولوي عبدالرحیم ثاقب سره یوځای تعزیت ته راغلی و.

دغه کلونو زموږ د قاسمیه مدرسې د پیل سخت ستړي او ستومانه کلونه ول او موږ د خپل درانه والد صاحب په لارښوونه د دې مدرسې لومړنیو زده کوونکو ته د یو داسې نصاب او هم نصابي کتابونو په چمتو کولو بوخت وو چې لومړنیو شاگردانو ته د قلم او ژبه په برخه کې مرسته وکړي ، په پښتو ژبه مو د صرف او نحوې کتابونه لیکل ترڅو له دوی سره د لویو صنفونو (درجاتو) دکتابونو په زده کړه کې مرسته وکړي.

مطمین صاحب مرحوم د نصاب لپاره د پښتو کتابونو په تیارولو کې زیاته مرسته وکړه او د دې لړۍ د پښتو او جغرافیې لومړني کتابونه په خپل قلم په ډېر زیار ولیکل او هم یې په دې برخه په گڼو ښو مشورو او لارښوونو ونازولو او د نفیس خپرندویه ټولنې مهالنۍ مشال مجلې ته زیاتې لیکنې وکړې او د خپلو پخوانیو تجربو په رڼاکې یې له موږ سره په دې نوي پیل شوي کار کې د قدرمن ورور مولوي محمد وزیر حامد صاحب (حامد افغان)په گډون زیاتې مشورې راکړې او بیا د قدرمن حامد صاحب په مالي لگښت د مشال مجلې لومړنۍ گڼه او هم د ټولنې لومړني کتابونه چې نوموړي لیکلي هم ول چاپ شول .

خپلواک صاحب د مدرسې په چارو کې هم ښکلې مشورې وخت په وخت راکولې او هم به یې په خپل راتگ سره نازولو، په ۲۰۲۰م کال کې چې کله د قاسمیه مدرسې ادارې پرېکړه وکړه چې نویو ځوانانو ته د سیاست په برخه کې د نړیوالو اړیکو یو کلن تخصص پیل کړي، د دغه تخصص تدریس ته یې هم په ډېره مینه ټېټر وواهه او په ډېره مینه یې د دغه کورس یوکلن بهیر تدریسي- چارې سر ته ورسولې او د همدې تخصص فعال او خواري کښ استاد و، نوموړي د نړیوالو اړیکو هغه اصول او بستونه طالبانو ته درس کول او هم ورسره د اسلام تگلاره شاگردانو ته په ډېره مینه او ولوله تدریسوله.

خپلواک صاحب سره موږ مینه له دې امله کوله چې د یو ستر انسان او د مسلمانانو غمخورشخص امیر المومنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله سره له نژدې پاتې شوی و او د نوموړي صحبت تړې ستر شخصیت جوړ کړ، مرحوم امیرالمومنین ستر شخصیتونه وروزل او د کشرانو استعدادونو ورسره وده وکړه .

د امام ابوحنیفه رحمه الله دوه پیاوړو شاگردانو: امام ابو یوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله ورسره په ډېرو فقهي مسایلو کې د نظر اختلاف وکړ؛ نوموړي د شاگردانو دغه کار ونه غنده، بلکې ویې ستایه او د خپل مذهب برخه یې وگڼله د همدې روزنې برکت و چې ستر شخصیتونه ترې وختل .

شاگردانو د استاد د دغه ستړې لورینې بدل کې ډېر څه وکړل امام محمد رحمه الله یې فقهي نظرونه په شپږو کتابونو کې خوندي او تدوین کړل چې وروسته د احنافو فقه د همدې شپږو کتابونو له برکته تیاره شوه ، امام ابویوسف رحمه الله چې کله د عباسیانو دوره کې لوی قاضي شو نو د خپل استاد فقه یې په ټوله اسلامي نړۍ کې رسمي او عملي کړه، خپلواک مرحوم د خپل فطري استعداد یادونه کوي او وایي چې :

اوس خـو مې پخـپلو قدر نشـته او رټـلی یم

داسې وخت به راشي چې پردو به هم منلی یم

**خپلواک مرحوم دیوه ستر شاعر په توګه**

خپلواک مرحوم د هغو ګوتو شمیر شاعرانو کې و چې شعر وایه ؛خو ډیر ښه وایه ،هغه نوښتګر شاعر و،دخیال لوړ پرواز یې درلوداو موږ ته یې د شعر په نړۍ کې ډیر ارزښناکه کرونده پرېښـووله،چې نومـوړي د زړه پـه وینو خړوبه کړې وه، د هغه پـه شـاعري کـې نـه شـنه خالونـه ، نـه هـم سپینې لیچې ، نه هم شنه بنګړې او تورې زلفـې وولونـه شـته ، بلکـې پـه شاعري کې یې د سوي زړه کریکې او آهونه ول چې د شعر په جامـه کـې یې ډیر ښه وپوښل لکه چې وایـي چـې : لـه زړه راوځـي پـه زړه وریـږي (ازدل خیزد بر دل ریزد )ځکه یې شاعري هم زیاتـه اغېزمنـه او زړه تـه ژر لاره کوي.

خپلواک مرحوم په پښتو ژبه کې دشنو بنګړو او د لیلا له حده زیاتـه او مکرره ستاینه دیوه قام او ژبې له پاره ناورین بولي،نوموړی پـه دې اړه مشال مجلې دوهمـې ګنـې ۴۳مخ کـې چـې د ۱۴۲۸هــ کـال د شعبان میاشت کې خپره شوه لیکلي ول : (( د هغې زړې لیلا او محبوبا اندامونـه ستایل چې له سلګونو کلونو راهیسې لا بشپړه نه ده څېړل شـوې او د دې دسترګو ،پوزې ، غوږونو ، زلفو اونـورو پـه سـتاینه کـې (زمـوږ د شـاعرانو) ډیرې سپینې او ملاوې کروپې شوې ..... د ښکلي اوښـکلا سـتایل یـوه فطري غریزه ده ؛ خو دایوه اجتماعي موضوع ګرځول او یا د دې سـتاینې اسلوب او چوکاټ نه پېژندل د انساني فطرت خلاف عمل دی ، پـه تېـره بیا د یوې مهذبې اسلامي ټولنې قلموال ته چې دځومره ټولنیز چوپړ هیلـه کیږي او یا هغه ځومره په دې لاره کې مسئول دی ؛ نو یقینا د هغه لپـاره دا ډول مکررو او عبثو موضوعاتو غوره کول د یوقوم او ژبې ناورین دی)).

نوموړي په پښتو ژبه کې ددغه ناورین لوی لامل د دینـي مـوادو نه شتون بولي او لیکـي چـې : (( پښـتو شاعرانو کـې چـې کـوم شاعر د ناپوهي له امله خدای جل جلاله او رسول ته په ګډو وډو سر شي ؛نو نـور ملګري یې ورته د فلسفي لقب غوره کړي چې فلاني صاحب فلسفي شو.

د الله جل جلاله او د هغه اسماني نظام پـه اړه بـې چوکاټـه او انحرافي ویناوې چې یـو ښـکاره جهـل او نـاپوهي ده ؛ خـو ددې نـاپوهي اوګمراهي علت هم لـه دیـن څخـه نـاخبري ده او داسـلامي مطـالعې نـه شتون دی .

که په پښتو ژبه کـې دینـي لیکنـې او معلومـات زیـات وای نـو پـه لومړۍ مرحله کې به پښتون ځلمي پـه ذهنـي توګـه سـالم روزل کیـده او ځان به یې له بې لاریو نه ژغورلی شو ))

د خپلواک صاحب شعرونه راښکون لري، وېښوونه لـري ،مینـه لري، نوموړي پخپل شعر کـې د (۲۰۰۱م) کـې پرافغانسـتان امریکـایي لښکرو یرغل وروسته دهېواد شل کلنه غمېزه په ډیر مهـارت پخپـل شـعر کې انځور کړې ځکه یې ددغې مودې شعرونه دردونکـي او پـارونکي دي چې په اوریدا یې د سړي زړه غځ او انتقـام اخېسـتنې تـه هوسـیږي، او د نوموړي ناکرار دریدلی زړه ته سخت ناکراریږي، بې صبره کیـږي او آخـر خبره له سترګو نه د اوښکو بهیدا ته رسیږي. چې دا د نوموړي دشـعر لـوړ هنري ذوق باله شي لنډه داچې د نوموړي شعر دکـم وکیـف ، سلاسـت او روان والي لـه پلـوه خـورا ښـه دی او دزمـوږ دعصرـ د لـوړو شـاعرانو سره ساری ګڼل کیږي اود ادبي ارزښت له پلوه ترچا کم نه دی.

**خپلواک صاحب د یوه ښه شاعر په توګه**

که څه هم پیغمبرصلی الله علیه وسلم له شعر ویلو دګـنـو دلایلـو له امله الله تعالی منع کړی و خوپخپلـه هغـه صلـی اللـه علیـه وسـلم بـه شاعران نازول، داد به یې ورکاوه، ډالۍ به یـې ورکـولې او نبـوي جومـات کې به یې ورته منبر سماوه چې شعر پرې ووایي اوهم به یې شاعران شعر ویلو ته هڅول او شعر به یې له غیشي (مرمۍ ) اغېزناک باله ، ځکـه خـو صحابه رضی الله عنهم مشهور شاعران لرل، زموږ فقهـاوو رحمهـم اللـه د داسې شعر ویل روا بللي چې ګټورې خبرې پکـې وي ،درواغ اوبـې ځایـه صفت او د مېرمنو ستاینه پکې نه وي بلکې د ښـه ګټـور شـعر ویـل چـې داسلام ننګه او ستاینه پکې وي زموږ علماوو مستحب بللی.

مولانـا عبـدالحق رحمـه اللـه ((وفـات :۱۰۵۲ هــ)) دمشـکات المصابیح شرحه لمعات التنقیح : ۸/ ۱۱۷کې لیکي: (( اشعار ټول لـه یـوې مخې هم ناوړه او بد نه دي لکه ځینې خلک چې ګومان کوي ؛بلکې هغه شعرونه غوره اوارزښناک دي چې غوره نصیحتونه او ګټـورې خـبرې پکـې راغلي وي )).

ملاعلي قاري رحمه الله ((وفات :۱۰۱٤هـ)مرقاة المفاتيح : ۷/ ۳۰۱۷کې هم ليکي: هغه شعرونه غوره ،ښه او ارزښتمن دي چې ګټور مضامين ولري)).ددې موضوع تفصيل زما بله ليکنه ((شعر اوشاعران داسلام له نظره )) کې شته .

دلته غواړو چې د خپلواک مرحوم د شعر په سبک لږ خبرې درسره ولرو : زموږ خوږ شاعر او نږدې ملګری ملا عبدالحي مطمين رحمه الله د معاصر اسلامي تاريخ د هغو شاعرانو له ډلې و چې داسلام او مسلمانانو په ننګه اودفاع کې يې ښه ډير شعرونه ويلي اوهم يې د طالبانو اسلامي غورځنګ او د اسلام د لارې غازيانو ستاينه کې يې هم شعرونه ويلي دي ، دغه راز نوموړي موږ ته پخپلو شعرونه کې غوره ديني نصيحتونه هم کړي او موږ يې د اسلام ننګې او دفاع ته هڅوولي يو او د اسلام د لارې مخلص لارويان يې ستايلي او له هغوی سره يې د خپلې وفاداري اعلان په کراتو مراتو د شعر په ژبه کړي .

هغه شعر کې غوره ديني مطالب په ډير کمال ځای کړل او نه يې شعر يواځې اويواځې د ليلا او شرينې د خال، جمال ، زنې ، زلفو، چوپړ ته وقف کړی و او نه يې شعر په اوتو بوتو اوچټياتو سر و؛بلکې ديو وفادار او اسلامي معتقداتو د ژمن شاعر په څېر يې خپل مسير ساتلی او پاللی ، همدې ځانګړنو ته په پام د نوموړي خواږه او روان شعرونه له ديني پلوه ارزښناک اوغوره شعرونه ګڼل کيږي .

خپلواک مرحوم د طالبانو داسلامي غورځنګ له برکته را وځليده او را وټوکيده. داچې دطالبانو داسلامي غورځنګ اواسلامي امارت د واکمني دوره زياتره د حماسو او جنګونو دوره وه،له همدې امله خپلواک مرحوم د شعر زياتره برخه حماسي او رزمي وخته ، دی خپل شعر کې د يرغلګرو امريکايانو اود هغوی د ملګرو هجوه او غندنه کوي او هم د خپلې لارې د غازيانو او شهيدو ملګرو يادونه او زياته ستاينه کوي او د هغوی کارنامې او رزمې ستايي.

د ده خواږه شعرونه دکندهار په طلوع افغان او څرک مجلو کې خپرېدل شعرونه يې ناچاپ دي، او ما به تل ورته ويل چې دخپلو شعرونو ټولګه چاپ کړئ، ول: ګورو به . خپل تاوده احساسات يې دشعر او نثر په ژبه د مطمين ،خپلواک اوحاجي کمال په نامه ښکاره کړي دي.




**د خپلواک مرحوم شعري سبک**

مخکې تردې چې دمرحوم خپلواک صاحب د شعر په سبک وغږيږو لومړی درته د سبک په مانا غږيږو، داچې ((هرشعر ځانته يوبېل رنګ لري، الفاظ او د کلماتو د نښلولو طرز يې بېل وي، خيالات او افکار پکې بېل وي، بحر او عروضي کيفيت اونور ټول خواص (ځانګړنې) يې جلا وي .

هر شاعر ځانته يواسلوب خوښوي او ويونکی په شعر کې بېله لار او بېله چاره لري چې خپل شعر پرهغه ډول سموي او پرهغه غوره کړې لار ځي. دغه خاص ډول اسلوب چې ځانته بيل خصايص او مادي او معنوي ښېګنې لري او په کم اوکيف له نورو څخه بېلېږي سبک بولي ..... [استاد عبدالحي حبيبي پښتانه شعراء : ۳۳مخ ]

خپلواک مرحوم پښتو ادب ته په خپل ديرش کلن شعري او ادبي ژوند کې لويه شعري اونثري زيرمه او پانګه پرېښووله چې نوي نسلونه به که خدای کول ترې ګټه اخلي، اوس به دنوموړي په شعري او نثري سبکونه لږ وغږيږو ،اوځانګړنې به يې ستاسو مخ کېږدو :

**لومړنۍ ځانګړنه : سادګي او سلاست**

مطمین صاحب مرحوم د شعر سبک ډیر سلیس او ساده دی له تعقید اوپچلتیا پاکه او خپل لوړ افکار او د سوي زړه غږ په ساده اوخوږو جملو کې څرګندوي.او د بیان اسلوب یې خورا روڼ او زړه راښکونکی دی نوموړی تر ډیره ځانته د خپل سبک جوړولو کې بریالی وخوت ،که څه هم خپرولو ته یې مرګي پرې نه ښوده ، تاسو دې شعرته وګورئ څومره ساده اوخوندور دی :

ګلاب سهار شونډې موسکۍ کړې غوټۍ وغوړوي

خــــو مازیګر چې سیلۍ راشي بیا تالا غونډې وي

دامریکا له یرغل وروسته چې نوموړی په ګوښه توب کې ژوند کاوه او د ترنم اوچیغدا هغه پخوانۍ مزه یې نه وه ، په دې اړه وایي:

نغمې دې ګونګې ، غږ دې ورک دی مطمینه یاره

لکه چې ته هم دحالاتو اضــــــطراب وخوړې

**دوهم : له تعقید او پچلتیا پاک شعرونه :**

دخپلواک مرحوم شعرونه ګرانې تشبیه ګانې نه لري اونه هم دتصور او خیال په دنیا کې له خپل ساده چاپیریال څخه وځي ، په شعر کې یې تشبیه ګانې زړه وړونکي ،بې تکلیفه او اواغېزناکې دي. نوموړی دخپل شهید ملګري ګور (قبر اومزار)ته ناست دی او په بیلتون یې اوښکې تویوي او خپلې سترګې او اوښکې له ډیوې او دهغې له اوښکو سره څومره ښکلې تشبیه کوی اوپه ډیره بې تکلفۍ وایي:

ستا پــــه مزار مې سترګې شمعې بلوینه ښنوا یمه

ژاړم له بیتلونه بینوا یمه ،ژاړم له بیتلــونه ښنــوا یمه

او دشعر بله کړۍ کې د دنیا بې وفایي یادوي او ژوند په منډه تیریدا له باد سره تشبیه کوي یانې لکه هوا څومره ژر او په لاپروایي تیریږي ژوند هم دغسې ژرتیریږي او بیا پخپلو ملګرو او دهغوی په ځوانیمرګو ارمانونه ژاړي او وایي :

دنیا خو هسې بې وفا ده ، ژوندون تیریږي یوه هوا ده

ما ژړوي د ځـــــوانیمــــرګو ارمـــانونه ښنـــوا یـــمه

ژاړم له بیلتــونه بیـــنوا یمه ، ژاړم له بیتـلونه ښنوایمه

ترهغه وروسته خپل ملګري له ناغوړیدلي پسرلي سره تشبیه کوي او د نوموړي دځواني له پسرلي دمخه یې په شهادت داسې ویر کوي :

شهید زړ ګی شهـــید ارمـــان شـو

نه غوړیدلــــــــــــی بل خزان شو

شهید طالبه رب در کړې جنتونه بینوا یمه

ترهغه وروسته دخپل اسلامي غورځنګ دغه اوږد او له کړاوونو ډک سفر یادوي او هغه پاکه لاره ګني د هغه سره د طالبانو سپیڅلې اوله کچې وتلې بې سارې مینه ستایي او دهغوی مینه زړه کې ساتي او وایي:

د پاک منزل په اوږده یـون کې

د سپیني مینې پـــــه جنون کې

((مطمین)) تللي لارویان نه هیروینه

بیا د مزار شریف د لیلي دښتې شهیدانو کې دمولوي صاحب احسان الله احسان شهید غونډې تکړه ویناوال ((یوه ګل)) بولي چې د هغه په شهادت او یاد کې به مرحوم امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله اوښکې تویولې چې خپلواک مرحوم د خپل باغ (اسلامي تحریک) د مالیار (مشر )په نامه یادوي او څومره ښه وایي:

کـــــــــــــه زر ګلونه یې تالاشي

((مالیار)) په ((یوه ګل)) پسې ژړا شي

چې یې خزان شي ګل ګلاب غونډې مخونه

تاسو دنوموړي په شعر کې لاندې تشبیهاتو ته ځیر شئ، هغه کندهار کې د مجاهدینو له لوري محبس ته په خارق العاده ډول پنځه میاشتې کې درې سوه شپیته متره تونل په ډیر کمال اودکندهار اوهرات له لویي لارې لاندې دکندهار مرکزي محبس (زندان) ته تیروي او د همدې تونل له لارې خپل نژدې ۵۳۱ بندیان ملګري د اپریل ۲۵مه کال ۲۰۱۱م دشپې په درې بجې پورې آزادوي چې یواځې ۱۰۶کسان پکې لوړ پورې قوماندان وو او له عملیاتو څلور ساعته وروسته واکمن پرې د سهار له لمر خاته سره خبریږي او د زندان مسولین ورځي ؛ ګوري چې زندان تش پروت دی . دی په دې شعر

کې طالب بندیان دهغوی غورځنګ ته دارزښت لـه املـه لـه ملغـرو سره تشبیه کوي او هم یې کتارونه له امیل سره تشبیه کـوي او څومره ښـه وایي :

څوک چې شوګیر کوي د څمکې لاندې لاره باسي

داسې دنر غوندي ملګري له حـــــــصاره باسي

ته په نایټ کلب دپایزیب شرنګا ته خـوب وړی وې

جـــانان امیل امیل لښکري ترســـهاره بــــاسي

مــــوږ په سجدو شپه رڼوو ته د بادار په پښـــو کې

دا غلامي به دې همیش داسې له کــــاره باسي

خوب مې لیده چې همدغه لښکر بیا ځان سمبال کړي

او بیرته راشي تاپه زور له دغـــــــه ښاره باسي

**دوهمه ځانګړنه : حماسه والي .**

دخپلواک مرحوم زیاتره اشعار حماسي اشعار دي.

هغه د روان او خواږه نـثر خاوندو،پـه نـثر او شعر دواړو کـې یـې خپل دردونه اونقدونه په اغېزناک ډول بیانوي که څه هم په شعر اونـثر کې یې انتقادي جنبه زیاته پیاوړې ښکاري؛ هغه یوشـوخ شـاعر دی او شعرونه یې غورځنګونه وهي خو ترڅنـګ یـې لـه نوښت او ابتکـار ډک ښکاري . نوموړی په یوه شعر کې خپل هدف ته ژمن ښکاري او دخپل یون په لوري چې روان دی نو خلـک یـې ملامتـوي دی ورتـه توصیه کوي او ورته وایي چې ما پخپله بیـره مـه ملامتـوئ او ورتـه وایـي چـې موږ ډیر انتظار کړی دی او پکې هغـه د شـېرو لمونځونـو د قضـا کیـدو فقهي قاعدې ته هم اشاره کوي :

بد راته مه وایاست چې کله په دې لاره راځـــــو

مـــــوږ څـو تنه لا د مینې لـه بازار راځــــو

ترتیب ساقط شو انتظار له شپږ لمونځونو واوښت

څــــــکه بې واره دقـضا دیـــدن له پاره راځو

دیدن چې وځنډیږي نوره جـذبه هم زیاته شــــي

موږ قضا کړي دیـــــــدونه چې بې واره راځـــو

یـــــوه ورځ به خامخا زموږ په پښو کې کانې لګي

ګـــل مو راخېستې داهم بیا دومره بې خاره راځو

په لاره پرتې ماتې تنې دي لیـــــوني تیر شوي

تــــــورې هغوی کړي موږ هسې په تیاره راځو

درومـــــــو هدف ته موږ ټول یو مطمین پتنګان

د ډاد محفــــــــل ته له کوڅـو د انـتـظار راځو

**درېیم : له تخیل ، نازک خیالي او تشبیهاتو ډک اشعار**

د دې ترڅنګ یې شعر کې تخیل پـه خورا لـوړه کچـه مونـدی شواو شعر یې د نازک او طبعي تخیـل پـه ګڼـه بشـپړ پسوللی او پـه همدې جامه یـې ښکلی کـړی دی او پخپـل شعر کـې پـه زړه پـورې داسې طبعي منـاظر رانغـاړي او داسې تخیلات راولي چـې ډیرنـادر، نایابه او خوندور وي. اوپـه شـعر کـې طبعي منـاظر ډیـر لنـډ او سـاده انځور کړي او شـعر یـې لـه ادبي او بـدیعي ښکلاوو او کیفیـت څخـه برخمن دی ، د شـعر پـه یـوه کـړۍ کـې کـې نومـوړی دغـره ډېډه کې میرې پیایي اوله ځانه یې شپونکی جوړ دی او هلته پکې شپلی غږوي او په بله کـړۍ کـې یـې بیـا سیند دی او سپینې رڼـې اوبـه رواني دي دچرګ آذان ، د ژر ندې شـور او د اوبـو جـوړا ده وخ !هغـه رحمـه للـه څومره ښه وایي :

بیــــــګاه مې خوب لیده د غره ډډه کې مېږې پیایم

شپیلۍ پرشونډو ږدم خــــو غږ مې د ژړا غوندې وي

سپیــــــــــنه سپوږمۍ سپینې ډبرې د سیند وځلوي

د چـرګ آذان ، د ژرنـدې شور، جوړ جوړ دسیند داوبو

ستـــــومانه روح ته مې دا درۍ واړه شــفا غوندې وي

**څلورم : هدف مندي او له سوزه ډکې وینا:**

د نوموړي د شعر ستره ځانګړنه داده چې : شاعري یې تصنعي او نمایشي نه ده ؛بلکې شعرونه یـې لـه سـوزه او اوره ډګ دي ،هـدف مندي لري او هغه یې د زړه غږ دی ،تشه وینا نـه ده ؛ بلکـې لـه خپلـې لارې ننګه کوي او لـه خپلـې لارې سره یـې شعرونه د یـوې ځـانګړې لیونۍ مینې غمازي کوي .نوموړي کلونه وړاندې دهېواد په شمال کې

خپل یوه ورک ملګري طالب په یاد کې ساندې وهي او اوښکې تویوي او هغه لټوي خو دهغه وجود خاورې شوی دی او دهغه دپلونو خاورې مچوي او ورته وایي:

پردېسې ساندې مې وهلې ...نه وې
ګرانه هر خوا مې لټولې .....نــه وې
دژوند ډیــــوه دې چا وژلی ،که څه ؟
چې پتنــــــګانو ننګولې ... نه وې
زهیر تصویر مې دې په خوب کې لیدی
په وېښتابه به رانه تللې ... نه وې
ستا دلټون په دې غمجن سفر کې
په هر رباط مې یادولې .... نـه وې
خوار مطمـین دې ترهمدې ساعــته
د پلونو خاورې مچــولې .... نه وې

**پنځم : آهونه او دردونه**

شعر کې یې د خپل زړه آهونه اودردونه او ګیلې یــې پـه خـورا کمساري سبک او ډیرو سویو کړیکو او خپلو اغېزناکو نارو او غلبلو کې ښکاروي چې ساری یې کم لیدل کیږي ، له همدې امله یې په شعر کې ځـور او خون جګري له ورایه بربښي او هم د ژوند لـه هغـو ستونزو سـتړی ښکاري چې نوموړي یې په منده کړی و ځکه یې په شعر کې غوغـا او شور ماشور دی اوهم په شعر کې له خپل وطـن او ولـس اوخـوږو تللیـو ملګرو سره بې کچه مینه ښکاروي داسې رښـتونې مینـه چـې د اوس پیر دشـاعرانو پـه شـعر کـې ډیـره کمـه بریښـي، نوموړی دیـوه شـهید ملګري یاد کې اوښکې تویوي اوخپل دستار ورته جنډه کـوي او خپلـه وینه هم دهغه په لاره کې نذرانه کوي او په دردمنده لهجه ورته وایي:

نن مې نرۍ اوښــــــکه په سترګو کې ویده ده اشنا
ستــــــــــــــادمرګي مې اوریدلې آوازه ده اشنا
ستـــــــــــا د وفاپه نوم شپې سبا کوم جانانه
وینه مې هم دستـــــــا په لاره نـــذرانه ده اشنا
ستا ترپرهر مې ټول وجـــــود شه صـــــدقه نګاره
دستار مې هم ستا پرمــــــزار باندې جنډه ده اشنا
تا د بې ننګ ژوند په بــــــدل کې شهادت غوره کړو
د مطــــــــمین درسره هم دا فــــــیصله ده اشنا

**د خپلواک په شعر او نثر کې ځانګړي پیغامونه**

استاد حبیبي مرحوم په شعر کې دپیغام ارزښت تـه پـه پـام سره لیکي: ((د معنا اوافکـارو سره دالفـاظو اوتـورو نښـلول اود دغـو پېيلولـو ډول د سبک یو مهم اساس دی اوهغـه منبع (سرچینـه)چې شـاعر لـه هغه څخه الهام اخلي د سبک په معنوي خوا کې ډیـر اهمیـت لـري )) [پښتانه شعرا مخکنۍ سرچینه].

رښتیاهم په شعر کې یو پیغام چې څومره ارزښـتمن وي ورسره هغومره هغه شعر ارزښت پیداکوي ، علامه اقبال مرحوم که څه هـم د اردو اوفـارسي ژبـې شـاعر دی خـو دا چـې پـه شـعر کـې داسـلام او مسلمانانو درد اوغم باندې غړیږې اوهغوی ته ښکلي پیغامونه لـري لـه همدې امله دنوموړي شعر ته عرب او عجم پـه درنـه سـترګه ګـوري او ښه پرې لګیـږي ځکـه چـې د شـعر پیغـام یـې هرڅـوک ځانتـه زیـات ارزښتمن بولي.

خپلواک مرحوم لکه په شعر کې چې په خپل ولـس اسلام او مسلمانانو څومره خوږمن، غمجن ښکاري ترهغه به زیات پـه مجلسـونو کې ویرجن او هدفمن ښکاریده. هغـه دخپـل هېـواد پـه خپلـواکي ډیـر مین شاعر و او کله چې امریکا په ۲۰۰۱م په افغانستان یرغل وکړ او زموږ وطن یې یرغمل کړ او د (ارګ ) په ګډون ټـول فـوځي تاسیسـات به هغوی ساتل نو خپلواک دخپـل هېـواد لـه لاسـه وتـلي خپلـواکي تـه سخت ځوریده اوپه یوه له سوزه ډک شعر کې وایي :

زمریــانو یـــووړه دنګـــو غرونو ته پـــناه
د غـــــــــزا ورځ ته خپل ایمـان ساتي
خپلواکه نشــته ،خـــپلواکي هېـــواد کې
دارګ مانۍ هم انګــریزان ســـــــاتي

**د مطمین صاحب د شعري سبک لارویان او سرلارې**

ټول هغه ځوانان شاعران چې د طالبـانو دغورځنـګ او اسـلامي امـارت لـه برکتـه راوټوکیـدل هغـوی ټـول د نومـوړي د همـدې سبک پلویان اویاهم دنوموړي لارویان ګڼلی شو که څه هم شاګردان یـې نـه شو بللی بلکې ددې لارې دمنډ ابستو سر لاري دي د یوڅو نومونـه یـې دا دي :

۱ــ شهید ملا محمدحسین مستسعد. ۲ــ ملا امیرخان متقي. ۳ــ ملا درمحمد گوهري . ۴ــ ملا عبدالحنان همت. ۵ــ ملا بدرالدین.٦ــ ملا ذاکر مهاجر. ۷ــ ملا عتیق الله عزیزي، ۸ــ استاد شپونکی .۹ ــ شهید ملا عبدالبصیر عبرت . ۱۰ ــ ملا عبدالحکیم حمدي او داسې نور ....

ترهغه وروسته دوهم اودرېیم نسل کې دغه نومونه مخته راځي:

۱ــ شهید مولوي سمیع الله ایوبي .۲ــ شهید مولوي محمد رسول وطنمل. ۳ــ مرحوم سیف مومند. ۴ــ قاري صاحب عبدالستار سعید۵ــ ملا محمد علیم بسمل. ٦ــ ملا عبدالدیان تکل .۷ــ دځرخ ملا محمد هاشم ذاکر.۸ــ چینارټکور. ۹ــ ملاعبدالله.۱۰ــ اکرام الدین مفتون. ۱۱ــ انس حقاني ، نور ګن شاعران دي چې دا مهال یې زما له یاده نومونه وتلي دي دغو ټولو ځوانو شاعرانو داسلام په درد اوهم دخپلو ملګرو په مینه کې خواږه شعرونه ولیکل او د مرحوم مطمین شعرونه دتحریک په لومړني، کلونو کې قدرمن ترانه ویونکیو هریو ملافقیر محمد درویش او قاري فضل الدین سراجي په ډیره مینه اوخواږه غږ کې ویلي دي اوهم دخواږه غږ خاوند محمدامین حیدري،سبحاني اغا او قاري صاحب بشیراحمد په خوږو ترانه ویونکو په خپلو خوږو اوازونه بدرګه کړي دي خدای پاک دې خیرونه ورکړي.

## دخپلواک مرحوم نثري سبک

د نثر سبک عام فهمه اومطلب خیزه اودیوې ګرانې خبرې تعبیر به یې په ډیر ښه انداز سره کاوه ځکه نثر یې دعام ولس له سویې پورته نه لیکه بلکې مفاهیم یې ډیر ساده لیکل .

داچې خپلواک دسیاسي ډګر سړی و نو له همدې امله یې نثري لیکنې زیاتره په سیاسي موضوعاتو کړي ده او هم دخپل هېواد په سیاست غږیدلی او ښه ډیر غږیدلی او سپین غږیدلی او د چا پروا یې نه ده ساتلې په خپلو اوپردو ټولو غږیدلی ، چې د نوموړي د ژوند وروستنی نااندریز کتاب یې ښه شاهد دی.

یاد کتاب کې اوترهغه را وروسته داسې سپیني اوشوخې لیکنې وکړې چې زموږ په څېر خلک به ورته بګاو(حیران) وو. همدې سپینو لیکنو ورته ډیرې ستونزې جوړې کړې او د ژوند وروستني کلونو په ډیر کش وګیر کې تېرکړل.مابه تل ورته ویل چې له داسې لیکنو تېر شي ځکه ګټه یې نشته ،ول :((یه ،داسې سپیین اوترخه حقایق ویل خپل مسولیت ګنم چې څه پښېږي هغه دې پښیږي)) .

## نویو ځوانو لیکوالانو ته ارزښتناکې توصیې

هغه سره به تل دنوي نسل دفکري انحراف او ارتداد زیاته اندېښنه وه او هغوی ته به یې توصیه کوله چې تاسو دین په قرانکریم او دیني سرچېنو له لارې وپیژنئ او دپردو کافرو په لیکنه کې داسلام پیژندنې هڅه مه کوئ ځکه هغوی نه غواړي چې راتلونکو نسلونو ته دې اسلام روغ رمټ تصویر وړاندې کړي.

خپلواک مرحوم په دې لړ کې دمولانا سید سلیمان ندوي رحمه الله ارزښناک ویناوو ټولګه ((خطبات مدراس)) یې د ((وړانګو لړۍ)) په نامه د خپلواک علمي او ادبي خوځښت ترنامه لاندې خپره کړه، د همدې کتاب په سریزه کې د ژباړن تر یادښت لاندې یې ۳مخ کې نویو ځوانو لیکوالانو ته د همدې کتاب لوست ته ور بولي او هغوی ته داسې ارزښتناکې توصیې پخپل ځانګړي نثري سبک کوي او لیکي: ((په اوسني پیر کې چې زموږ سیمه د اعتقادي یرغل له ګواښ سره مخ ده او د مسلمان ولس پر نوي غوړېدلي نسل په هجومي توګه پردي عقاید تپل کیږي، یو شمیر نوي ځوانان ــ په ارادي او یا هم غیر ارادي توګه ــ د اسلام روښانه تصویر د لویدیځ په غلیمانه او توره هېنداره کې ګوري، فکر کوي چې د اسلام ازلي او ابدي ژوند هم د ځیني منسوخو دینونو په څېر بې روحه انځور دی ، هغوی پرته له دې چې د الله جل جلاله وینا (قرانکریم) واوري ، یا د مسلمانانو د خولو او اوښکو په مټ ساتل شوي لیکلې ذخیره (دیني سرچینو)کې ولولي، د اسلام د ازلي د ښمنانو (نامسلمانو) مستشرقینو له تعصب، فریب او دښمنۍ نه ډکو لیکنو ته پناه ور وړي، د هغوی په دښمنانه او انحرافي لیکنو د اسلام پېژندنې ناکامې هڅې کوي، ځکه دا ډول ځوانانو ته د دې ارزښمتن کتاب مطالعه د یو فکري او ذهني انقلاب پیلامه ده، له همدې امله په اوسني وخت د دی کتاب ژباړه ډیره اړینه بریښنده)).

که څه هم دا لیکنه ډیره اوږده شوه، خو لوست به یې که خدای کول له ګټې خالي نه وي او په پای کې د فرهنګي کمسیون له درنو مشرانو هیله لرم چې مطمئن صاحب مرحوم شعرونه او نثرونه د خپلو نورو کتابونو په څېر همداسې ښکلي چاپ کړي؛ ترڅو راتلونکي نسلونه د نوموړي له شعر او نثر څخه ښه الهام واخلي .

# د ملاعبدالحي مطمئن

## په اړه څو خبرې...!



ليکوال: موسی فرهاد

مرحوم مولوي عبدالحی مطمئن رښتیا نېکمرغه انسان و چې پس له مرگه يې د دعا ډېرې داسې لپې ومونـدلې چـې هـيڅ نسبي رشته يې نه ورسره لرله، ډېرو وگړو د ارمان لاسونه پسې ومـروړل، د ابدي فراق د خبر په اوريدو يې غمجن شـول، خوالـه رسـنيو کـې د «اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ...» نبوي هدايت سره سم بې شمېره خلکو نوموړی په دعاگانو او ښو خاطراتو ولمانځه. اللـه تعـالی دې پـرې تلپاتې رحمتونه ولوروي.

مرحوم مطمئن صاحب مې له نژدې دوه نيمو لسيزو راهيسـې داسې پېژنده؛ چې ډېره قريبه دوستانه، مخلصانه او سپيڅلې ملگرتيا مو ورسره لرله، د سفر او حضر، غم او خوښۍ، سړو او تودو شيبو بې شمېره خوږې خاطرې يې راسره دي. چې په ليکلـو يـې ښـايي؛ بلا ډېرې پاڼې ډکې شي.

د روانو دوو لسيزو په جريان کې که څه هم نوموړي له ډېرې اوږدې مودې راهيسې ځان پـه حاشيه کـې گمنـام پـاتې کـړ، خـو حقيقت دا دی چې هغه يوعادي وگړی نه، بلکـې يـوه لويـه هسـتي وه، د نثر پياوړی قلم، د نُطق ښـه حنجـره، د تحليـل ژور درايـت، د شعر طبيعي قريحه او د استدلال غښـتلی انـداز يـې بـلا مبـالغې لـه ځانگړو صفاتو څخه وو. چې متاسفانه پـه حاشيه کـې د پاتېـدا لـه کبله يې له ورتيا، ور گټه پورته نشوه.

## په حاشيه کې څنگه پاتې شو؟

د نوموړي له اشعارو او ځينو نثري توکو نه نن سبا يو شـمېر خلک اټکل کوي چې گويا ع.مطمئن گيله من ولاړ، ظاهره خبره ده چې د دې خلکو گمان دا دی چې مطمئن لـه اسـلامي امـارت سره مشکل درلود، گيلې او شکوې يې هم له نظامه وې، او گويا په نظام کې هغه شا ته کړای شوی و .

ولې حقيقت داسې نه دی، بلکې حقيقت دا دی چـې مطمـئن نه له امارت سره ستونزه درلوده او نه امارت هغه شا ته کړی و. د دې لپـاره کـافي دلايـل شـته چـې دا دوه اړخيـزه وفـاداري ښـه تـرې څرگنديږي .

په اوس وخت کې چې جهادي مقاومت د بريا په درشل کې بريښي؛ ممکن ځيني خلک په امارت کې گډون د منصب او امتيـاز پخاطر کوي؛ ولې د اشغال په ابتداء کې د امارت له جهـادي قـافلې سره ملگرتيا هيڅکله د مادياتو او څوکۍ پـه مقصـد نـه وه، بلکـې د سر، مال، اولاد، قرباني کول او په اور د ورگډېدلو مرادف يـو عمـل و، او امارت هيڅوک هم دې قربانۍ ته په زور نه را وستلي او نه يې را وستلای شوای، بلکې هر مجاهد د ايمان د تقاضا په اسـاس او د ملي روحيې له مخې پخپله خوښه را ولاړ شوی او امـارت يـې هـم هرکلی ځکه کړی؛ چـې پـه دې سـتره معرکـه کـې طبعـاً وگـړو تـه، خصوصاً اهلکار خلکو ته اړتيا موجوده وه، نو دا هيڅکلـه د توجيـه وړ خبره نه ده چې امارت دې خپل خلک پـه شـعوري توگـه پخپـل لاس شا ته غورځولي وي.

## پـه مطبوعـاتي او سياسـي ډگـر کـې د نومـوړي څو کارنامې د بېلگې په توگه:

۱ - په دوه زره دريیم او څلورم کال کې چې لا د ناټو د اشغال په وړاندې د مجاهـدينو د مقاومـت ابتـدايي حـالات وو، پـه طالـب مشرانو او طالبانو پسې سلگونه اشغال پالو رسنيو خـولې خلاصـې

کړې وي، اعلانونه به يې کول چې دومره طالب مشران له حکومت سره يوځاى شول، دومره تسليم شول او دومره وسلوال مجاهدين ژوندي ونيول شول، دا وشو او هغه وشو. تر دې چې د طالبانو د واکمنۍ پرمهال د رئيس الوزرا مولوي عبدالکبير په مشرۍ د يو شمېر لوړپوړو طالب چارواکو د تسليميدو دروغجن خبر د رسنيو سرټکی وگرځيد.

په دې وخت کې ملاعبدالحی مطمئن، ما خپله وليد، ده ويل، دا رسنۍ داسې نه وي چې هر وخت يې تبليغات موثر وي، بلکې دا يو ځانگړی وخت او يو خاص شرايط وي چې پروپاگند يې ډېر اغيزناک واقع کيدلاى شي، او دښمن خپل هدف ته رسيږي.

د ده په وينا يو له هغو نه همدا وخت دی چې تر اوسه لا د جهادي مبارزې د تنظيمولو شباب حالت دی؛ په دې وخت کې د مجاهدينو خصوصاً د مشرانو د تسليمۍ، وژل کيدا او يا د انشعاب غوندې منفي خبرونه پر مجاهدينو ډېر بد اغيز کوي، نوموړي وويل دا مهال موږ، مطبوعاتي ملگرو ته په کار دی، په هر ډول قرباني چې کيږي؛ بايد حتی الوسع د دښمنو رسنيو دا هڅه ناکامه کړو.

سره له دې چې هغه به ډېر ځان پټ ساته؛ په هيڅ صورت يې ټليفوني وسايل نه کارول؛ خو په دې وخت کې يې سټلايټ ټليفون په لاس، څو ورځې مسلسل له رسنيو سره د دې ډول افواهاتو په ترديد لگيا و، چې نتيجه يې هم مثبته را ووته.

۲ - بل ځل، دوه زره شپږم کال، پاکستان کې د طالبانو د نظامي چارو د پخواني وياند مفتي حکيمي له نيولو کيدو سره، يو ناڅاپه رسنيو ته د مجاهدينو د خبر رسولو خلا رامنځته شوه، او په پاکستان کې د هغه نيول کيدلو د دښمن د پروپاگند لاره هم خلاصه کړه.

په دې وخت کې ملا عبدالحی مطمئن بيا رسنيو ته ځان مخکې کړ، له ځينو رسنيو سره يې رغيزې او له ځينو سره ليکلې مرکې وکړې، چې د ناڅاپي خلا او د دښمن د پروپاگند مخنيوی يې څه ناڅه وکړ، بيا مشرانو خصوصاً شهيد مرحوم ملا عبيدالله اخند په دې برخه کې له مطمئن نه د مستقل حل مشوره وغوښته، مطمئن له دوه ورځو وقفې وروسته ورته وويل چې د امارت د مطبوعاتي وياند لپاره ما داسې طرح جوړه کړې، چې په فعلي شرايطو کې به وياند يو نه، بلکې دوه يا درې تنه وي، او په مستعار نامه به وي، او تر ډېره حده به سيار ژوند کوي، او دوه کسان يې د قاري يوسف احمدي او ډاکټر حنيف په نامه ورته معرفي کړل، طرزالعمل او تگلاره يې هم ورته ترتيب کړې وه، مشرانو سمدستي تائيد کړه او له ده نه يې غوښتنه وکړه چې د وياندانو د دې سيټپ مشري به هم ته کوې، ده ټه وکړه خو د هغوی له اصرار سره يې خبره ومنله، ترڅو چې د امارت فرهنگي کميټه د نورو کميسونونو په څير د فعاليت اوج ته رسيده؛ د وياندانو شبکه په همغه شکل را وچليده او ښه نتيجه يې ورکړه.

۳ - بل ځل د أميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د خبر له وفات وروسته چې د نوي أمير شهيد منصور صاحب د انتخاب مرحله يوه ډېره چيلنج کوونکې مرحله وه، مطمئن مرحوم په همدې وخت کې هم په رسنيز ډگر کې ښه رول ولوبوه.

که څه هم دا مهال د امارت فرهنگي کميسيون په پوره ډول فعال و، د اختلافاتو د مخنيوي په برخه کې يې موثريت د لمر غوندې څرگند و، خو د فرهنگي کميسيون د هڅو ترڅنگ مطمئن هم د يو مشهور مطبوعاتي کس په حيث له خپل مطبوعاتي رسالته ځان ونه سپماوه .

## په سياسي برخه کې د هغه کردار :

که څه هم له نرۍ سره د طالبانو د ارتباط سياسي چينل په ۲۰۱۱م کال کې د قطر پلازمينه دوحه کې پرانيستل شو، خو تر دې وړاندې او وروسته هم طالبانو له بيلابيلو هيوادونو سره د اړيکو متبادل چينلونه درلودل، چې په مټ يې ښايي ډېرې سياسي لاسته راوړنې هم موندلې وي .

دا ابتکار تر ډېره د شهيد ملا اخترمحمد منصور بلل کيده، او زياتره استاځي هم د ده په لارښوونه، يوې او بلې خوا ته ليږل شوي، چې په دې کې يو هم مطمئن و، نوموړي چين، روس، ايران، عربي امارات، قزاقستان او ترکمنستان ته په مختلفو وختونو کې سفرونه کړي وو چې وروستی هغه يې په ۲۰۱۵ کې چين ته سوی و .

تر دې وروسته د سياسي دفتر د ملاحظې له امله شهيد منصور رحمه الله له هيوادونو سره د اړيکو متبادل چينلونه محدود او نوعيت يې وربدل کړ .

له پورتنيو څو بېلګو نه څرګنديږي، چې نوموړي اسلامي امارت او نظام ته ښه وفاداري لرله. هم يې د اسلامي امارت په ښه لوړه کچه خدمت کړی او هم يې امارت د خدمت کولو تلوسه لرله .

يعنې په ځلونو به مشرانو ورته ويل؛ چې ته په خلاص مټ را ميدان ته شه، يو خدمت ته اوږه ورکړه، خو ده ويل چې زه شخصي مصروفيات لرم، مريضي ـ لرم او داسې نور... له يوځل رابطې وروسته به بيا په مياشتو مياشتو له هرچا سره رابطه قطع کړه، هيچا به نشواي موندلای، بل وخت به بيا را څرګند شو. بيا به همداسې يو دم ورک شو. خو له دې هرڅه سره سره بيا هم نوموړی په اعزازي او عملي ډول د امارت د مطبوعاتي او سياسي ډګر غړی و .

په دوه زره شپاړسم کال کې د منصورصاحب له شهادت وروسته مطمئن تر پخوا زيات غلی پاتې شو، خلکو ته به يې د شخصي مصروفياتو او ناروغۍ خبره کوله، خو په ۲۰۱۷ م کې په ناڅاپي ډول د هغه د يو کتاب د چاپېدو خبر خپور شو.

تردې څه موده مخکې د مرحوم أميرالمؤمنين د ورور ملاعبدالمنان لخوا له ځينو ليکوالانو نه غوښتنه وشوه چې د أميرالمؤمنين د ژوند په اړه دې د يو اثر په ليکلو کې ورسره مرسته وکړي، په دې ليکوالانو کې زما په شمول، عبدالحی مطمئن او يو شمېر نور ملګري هم وو، مګر مطمئن هغه وخت ګمان کوم ځان د مريضۍ په بهانه شاته کړ، خو وروسته مالومه شوه چې ده لا له وړاندې ځان ته پر يو کتاب ليکلو کار پيل کړی و.

**کتاب:**

د مطمئن کتاب چې د (ملا محمد عمر، طالبان او افغانستان) په نوم په ۲۰۱۷ کې چاپ شو؛ په اړه يې ما هغه مهال هم په يوه ليکنه کې خپل نقطه نظر څرګند کړی و، مال ښايي پښتو کې يوازينی کتاب وي چې د ځينو اشتباهاتو له کبله هرچا، يانې خپل - پردي دواړو ته پرې د اعتراض موقع په لاس ورغله، دښمن په دې وجه مصادره کړ چې أميرالمؤمنين، طالبان او د هغوی امارت يې من حيث نظام داسې ځلولی و چې د دښمنانو پرسترګو او افکارو ښه نه لګيده.

خو دوستانو ته په دې وجه قابل اعتراض و چې بلاضرورته يې د ځينو اشخاصو شخصيتونه په نه څه داغداره کړي وو، او زياتره يې د (تا ويلي، ما ويلي،) په اساس راوړل شوې خبرې وې. ما خپله شخصاً په دې اړه ورسره ډېري مشاجرې کولې، په وروستيو وختونو کې نوموړي خپله هم د خپل کتاب په اړه ځينې توکي، د ځان تېروتنه ګڼله .

مګر د کتاب د سريزې په حواله يې بيا ځان پر نه باله، بلکې خپل بشري عجز او يا د سرچينو کمزورتيا يې ګڼله، ده د خپل کتاب په سريزه کې ويلي وو :

» زما دغه کتاب د خپلو ليدليو او اوريدليو پيښو يو ريښتينی حکايت دی چې د لوستونکو په وړاندې يې ږدم ، دا زما قضاوت او شخصي دريځ نه دی او نه د چا په فرمايش او نه هم چا ته کمپاين دی.«

ده ويلي، « په کتاب کې مې معلومات يا خو خپل دي او يا له نورو ترلاسه شوي، هغه چې له نورو مې اخيستي، د ځينو د نا کره والي پړه يې بايد پر ما ونه غورځوله شي، خو د ليکنې په جريان کې چې مې تبصرې دي؛ په هغوی کې ښايي غير اختياري تمايلات موجود وي چې هغه مې بيا د بشري عجز برخه وګڼئ«.

د مرحوم مطمئن د ټولو ښيګڼو ترڅنګ د هغه يوه لويه نيمګړتيا ښايي دا وبلله شي چې هيڅکله يې له چا مشوره نه غوښته، ډېرو ملګرو چې به له خپله اړخه مشوره ورکوله، هغه به يې هم صرف نظر ګرځوله. که چيرې نوموړي په ځينو کارونو کې د ملګرو او خواخوږو مشورو ته اعتنا کولای، ممکن د ډېرو شيانو تصحيح به داسې شوې وای، چې د ده لپاره به د پريشانۍ سبب نه ګرځيدل .

زما د مالوماتو له مخې کتاب يې ترچاپ وړاندې له هيچا سره د مشورې په منظور شريک کړی نه دی، ځينو کسانو ته چې يې ورکړی؛ هغه هم شايد د پروف د تصحيح، کمپوز، ډيزاين او يا بل داسې مقصد لپاره وي.

حتی مشر ورور یې شیخ غلام رسول صاحب چې یو برجسته عالم او بادرکه شخصیت دی، هغه وای ما ورته وویل چې ګوره ستا قلم او ژبه ډېر فرق سره لري، له ژبې دې خلک خوښ دي، خو له قلمه ناراضه. دا ځکه چې ته قلم په یوازې سر چلوې او ژبه کې خو دې مخاطب موجود وي. نو احتیاط وکه چې قلم دې هم همداسې نرم و اوسي، خصوصاً د خپل صف خلک دې باید ورڅخه ونه ځوریږي.



**خاطره :**

شهید مستسعید رحمه الله چې د غیرت، سپېڅلتیا او ریښتینولۍ ترڅنګ یوه اکاډمیکه الګو هم وه؛ له مطمئن صاحب سره یې ډېره دیرینه او مخلصانه ملګرتیا لرله، ډېرې زیاتې ظریفانه ټوکې به یې هم ترمنځ تبادله کیدلې. او لفظي مشاجرې به یې هم سره کولې، یوځل په یو مجلس کې مطمئن پر مستسعید صاحب باندې مسخره وکړه. هغه ورته وویل، ګوره مطمئنه! د ټوکې حقوق محفوظ دي، دا ټوکه خو تېر کال په پلاني ځای کې ما پر تا وکړه. او تا نن بیرته پر ما وکړه. زه حق لرم چې په خلاف دې محکمې ته مراجعه وکړم.

= یو وخت زه پېښور ته د څه کار په مقصد تللی وم، غالباً د دوه زره پنځم کال وروستۍ میاشت وه، هلته مې شهید مستسعید او مرحوم مطمئن دواړه یوځای ولیدل، په دې وخت کې یو سړی راغی، څو شیبې وروسته بیرته ولاړ، دوی ویل دا قاسم حلیمي دی، (هغه چې اوس فعلاً په کابل کې د اشرفغني د اوقافو وزیر دی) دې سړي له مطمئن مرحوم سره ښه مدارات کول، راشه درشه او اړیکې یې خورا دوستانه مالومیدې .

مطمئن صاحب به د حلیمي د باګرام د بند، ښه استعداد او اخلاص کیسې ډېرې کولې، شهید مستسعید غلی ناست و، آخر کې یې ورته وویل، په دې سړي (قاسم حلیمي) کې ښایي دا ټولې خبرې وي، مګر زما شرحِ صدر نه ورته کیږي، حِس او فراست مې دا راته وایي چې په دې سړي او هغه پلاني کې (یو بل مشر- سړی یې ورته یاد کړ چې اوس یې تازه بیعت کړی)؛ هیڅ خیر نشته، یو وخت به یې ته ووینې چې دا به پر بل مخ اووښتي وي، راشه درشه ډېره مه ورسره کوه، چې بیا به وروباندې پښېمانه یې.

د نوموړي له وفات نه ښه موده مخکې مې په داسې حال کې ولید چې په کابل کې د حلیمي د وزیر کیدلو خبر پر نیټ ګرځیدی؛ ما د شهید مستسعید هغه خبره ورته یاده کړه، ده ویل بلکل هغه مې هیڅکله له زړه نه وځي. ربښتیا چې د تقوادار مؤمن فراست د الله له نور څخه وي. «اتقوا فراسة المؤمن، فانه ینظرمن نورالله »

## وروستۍ لیکنه یې:

په ۲۰۱۷ کې د کتاب له چاپیدلو او پر هغه د یو شمېر اعتراضاتو له را ټوکیدلو وروسته نوموړی تر یوه کال زیاته موده تقریباً له هر چا سره بې رابطې و، که څه هم د ځلاند په نوم آزاده ویب پاڼه هغه له ډېر وخت راهیسې چلوله، او دا به یې هم پته ساتله، هلته به یې د خپلواک، ملاجنت ګل، نرګس، کسات، حاجي کمال او یو شمېر نورو نومونو سره لیکنې کولې، خو وروستۍ لیکنه یې چې د أمیرالمؤمنین د شېږم تلین په مناسبت کړې وه؛ پر یو شمېر مشرانو او نورو اشخاصو یې د زړه براس ایستلی و.

دا لیکنه یې هم پرځای د دې چې وستایله شي، د ځینو خواخوږو ملګرو له نیوکو سره هم مخ شوه، او دا کار یې د ده د هغه یواځیتوب پایله وبلله، چې پخپله یې قصداً ځان ګوښې ته کړی .

ما ورته وویل، د دې لیکنې ارتیا دې څنګه محسوسه کړه، تر اوسه خو لا هغه د کتاب خبره نه ده سړې شوې، او بل ما ویل تا

چې په لیکنه کې د کومو خلکو یادونه کړې، (نومونه مې ورته یاد کړل) مال له هغوی نه خو ما تر اوسه ستا په شان کې څه منفي خبره نه ده اوریدلې، اوس هغوی هم حیران دي چې دا خبرې یې څنګه راپسې لیکلې.؟

خو مطمئن صاحب د خپلو دفاعي دلایلو ترڅنګ دا ویل چې دا زما وروستی لیکنه ده، ما خو غوښتل چې له همدې لارې د اصلاحي نقد دروازه پرانیزم، خو متاسفانه چې په دا منځ کې نورو خلکو هم خپلې زهرجنې لیکنې وکړې، او خلکو په پټو سترګو ما ته منسوبې کړي. حالانکه هغه ما نه دي کړې. او نه د داسې لیکنو چې دښمن ورڅخه ناوړه استفاده کوي؛ پلوی یم.

زما وعده دا ده چې نور زما خپل علمي او درسي مصروفیات زیات دي، زه به هیڅکله بیا داسې لیکنې ونکړم. دا خبره یې بیا د واټساپ په یو صوتي پیغام کې هم پرې ایښې وه چې اوس هم له ډېرو کسانو سره شته.

بهر حال مرحوم مطمئن، په پخه ځواني کې له یو عالم ارمانونو سره له فاني دنیا ولاړ، الله دې رحم باندې وکړي. خو دا چې ځینې خلک یې په اړه افواهات خپروي چې ګویا امارت له ده او یا ده له امارت سره بې وفایي کړې؛ دا هیڅ حقیقت نلري، البته په دوامداره او علني ډول د عمل میدان ته نه راوتل یې تر ډېره حده خپل انتخاب و، خو کله یې چې د خدمت جذبه را ټوکیدلې او ارتیا یې احساس کړې؛ په هغه وخت کې یې ښه رول لوبولی، لکه پورته چې یې څو مثالونه ذکر شول .

مطمئن صاحب له نژدې یوې میاشتې ناروغۍ وروسته په روغتون کې په حق ورسید، د ناروغتیا پرمهال یې د امارت مشر تابه هر مهال له حاله ځانه خبر کړی، د خدمت سپارښتنه یې کړې، او کما حقه یې خدمت هم شوی دی. په دې باندې د مرحوم خپله کورنۍ او نژدې دوستان ټول خبر دي .

وایي:

د بیلتانه قاصده کله د ښو لو یې ته
په سورکو شونډو دې مسکاوي د شباب وخوري
نغمې دې ګونګې غږ دې ورک دی مطمئنه اشنا
ښکاري چې ته هم د حالاتو اضطراب وخوري
پای......

# ارواښاد مطمئن رحمه الله

## جذاب او یادګاري شخصیت!!



دنویمې لسیزې په شروع کې موږ د بلوچستان ایالت د کوټې په ښار کې درسونه ویل، دا وخت د کابل کمونستي رژیم نسکور سوی او د مجاهدینو تر مینځ انډوخر روان و، هغه وخت د دیني مدرسو طالبان اکثر د جمعیت طلبه حرکت په تنظیم کې منسجم و، جمعیت طلبه حرکت د حرکت انقلاب اسلامي لخوا د طالبانو او محصلینو لپاره یو ښاخ و، که څه هم جمعیت طلبه حرکت د طالبانو د ښه انسجام او د استعدادونو د رشد لپاره کوم موثر پروګرامونه نه درلوده، خو طالبان هم لاس تر زنې نه و ناست، په خپل سر یې په خپل مینځ کې وړې وړې ټولنې جوړې کړې وې، چې هغه وخت به موږ ورته انجمن ویل.

انجمن به د یوې محلې په سطحه یوه منظمه ټولنه وه، خپل پوره تشکیل صدر، ناظم او نور مسؤلین به یې درلوده او هره هفته به یې ناسته وه، د نورو پروګرامونو تر څنګ به طالبانو د جمعې په شپه د تقریرونو سیالي هم سره کوله،

یوه ورځ مې په یوه مجلس کې واوریدل چې د شیخ مانده( د کوټې په ښار کې یوه سیمه) د انجمن ناظم ډیر فعال سړی دی، ښه مطالعه لري، سیاسي دی او...

انجمن یې ډیر متحرک ساتلی دی، دا طالب ملا عبدالحی منتظري نومیږي،

دمطمئن صاحب لومړی لقب منتظري و، بس موږ هم له خدایه دغسې سړی غوښت، په دا بله ورځ د یوه بل ملګري په ملتیا ور روان سوم او دوه درې د تنظیمو چاپ سوي کتابونه مې هم د ډالۍ په ډول ورته را واخیستل.

هلته مو مطمئن صاحب پیدا کړ او د هغه وخت پر حالاتو سره وږغیدلو، مجلس یې جذاب او هیله ښښونکی و، له همدې ځایه مو له مطمئن صاحب سره شناخت شروع سو.

یوه ورځ زموږ درس ته راغلی و، زما په لاس کې یې د سلیمان لائق د لنډو کیسو یو کتاب ولید، وایي دا به زه چېرته پیدا کړم؟

ما یې ادرس ورته وښود، هغه یو کتاب خرڅونکی و، ښه مسلمان او خواخوږی سړی و، موږ به د کتاب د اخیستلو توان نه درلود، نو له ده به مو د یوې هفتې لپاره په استعاره کوم کتاب اخیست او اونۍ وروسته به مو بیرته ورته راووړ، بیا به مو بل ویوړ، مطمئن صاحب مې هم هغه ته ورشناخته کړ، سخت خوشاله سو، بیا به مو اکثر وخت د هغه کتابفروش چې طالب نومیده، په کتابتون کې سره لیدل.

موږ لا په همدې انجمنونو کې سره سرګردانه و چې په کندهار کې د طالبانو لخوا هیواد ته له تجزیې او ټوپکیانو د نجات تحریک شروع سو،

خو پوهیدلو نه! چې مشر یې څوک دی او څه غواړي؟

وروسته له کمو مالوماتو راته ثابته سوه چې مشر یې ملا محمد عمر نومیږي، د حرکت یو مجاهد او قومندان تېر سوی، هدف یې د محلي ټوپکیانو کنترول او د اسلامي نظام راتلل دي.

بس نور نو موږ ته د نور تحقیق ضرورت نه و، لومړی مولوی وکیل احمد متوکل صاحب ته ورغلو، متوکل صاحب هغه وخت مشر و او د جمعیت طلبه ډیر پروګرامونه به له ده سره وو، هغه هم په کندهار کې د شروع سوي تحریک تائید وکړ او ویې ویل چې موږ باید ورسره یوځای سو، که څوک ځي موږ یې د سفر تابیا کولی سو.

موږ دوه ملګري وو، لومړی مو له مرحوم مطمئن صاحب سره رابطه وکړه چې کندهار ته په تللو کې یې راسره ملګری کړو، هغه وویل چې زما اوس دستي اراده نسته چې دا شروع کتابونه مې ختم کړم بیا ضرور ځم او کتابونه په لنډوخت کې ختم کیږي.

موږ د سلو نورو طالبانو په ملتیا کندهار ته ولاړو، دا هغه وخت و چې کندهار ښار نه و نیول سوی، تر موږ یوه ورځ وړاندې طالبانو دبولدک ولسوالي نیولې وه،

بیا مو له مطمئن صاحب سره رابطه ختمه سوه، له شاوخوا دوه کلونو وروسته یوه ورځ دکندهار د اطلاعات او کلتور په ریاست کې ناست و چې چوکیدار راغی، وایې یوه مېلمه درته منتظر دی، چې راغلم مطمئن صاحب ناست دی، لنګوټه یې هم نسته، پټو یې پر سر تړلی دی،

ستړي مشي مې ورسره وکړل، مال دا ولې په داسې اضطراري حالت کې یې؟ وایې له بولدکه په کوم کار پسې راغلی وم، په تاسو خبر سوم چې دلته یاست مال چې پوښتنه مو وکړم.

مال په بولدک کې څه کوې او څومره وخت کیږي؟ وایې هلته د کوم ګروپ مشر یم، ښه ډیر وخت کیږي.

مال بولدک مولدک دې پریږده راځه دلته راسه، له موږ سره به ملګری سې، دلته تاسو ته ضرورت دی،

ده هم ومنله، څو ورځې وروسته راغی، بیا مو متوکل صاحب او مولوي امیر خان متقي صاحب ته معرفي کړ، متوکل صاحب هغه وخت د کندهار د اطلاعات او کلتور مشر و او مولوی امیر خان متقي د کندهار د رادیو مشر و، نور نو مرحوم مطمئن صاحب زموږ رسمي ملګری سو.



مطمئن صاحب په لومړیو کې کومه مشخصه دنده نه درلوده، چې لږ بلد سو د کندهار د رادیو لپاره به یې کله کله ورځنی تبصرې لیکلې او په څنګ کې به یې یو نیم شعر هم ورسره لیکلو، چې د هغه وخت نعت خوانانو به په ترنم کې زمزمه کاوه او یا به د طلوع افغان په ورځپاڼه کې نشریده.

موږ هلته کم وخت سره تېر کړ، د کابل له فتحې وروسته موږ کابل ته ولاړو او مطمئن صاحب د کندهار د اطلاعات او کلتور د ریاست د رئیس په ډول وګمارل سو.

چې له هغه وروسته د مرحوم امیرالمؤمنین د ویاندویی دروند مسؤلیت هم ور تر غاړې سو.

زموږ شناخت او ملګرتیا له مطمئن صاحب سره ډیره اږوده سابقه لري، څومره چې ما هغه مرحوم پیژندلی

و، نو تر ټولو خلکو ډیر ځیرک او دحالاتو په ژر درکولو کې ماهر و.

طبیعت او ذوق یې ملنګي ته ورته و، تصنع او مصنوعي ژوند یې نه خوښیده، له پیسو او قدرت سره یې هیڅ علاقه نه وه، تر دې چې مونږ به کله له کابله راغلو نو چې کله به پر کوم هوټل یا بل دوکان ور پېښ سو، دده جېب به هر وخت خالي و، مونږ دا هیله نه درلوده چې پیسې به یې دی ورکوي، ځکه پوهیدو چې په جېب کې څه نه لري. په داسې حال کې چې هغه وخت هم ویاند او هم رئیس و، مرحوم مطمئن صاحب د شعر عجیبه قوه درلوده، شعر به یې هر وخت له دردونو او یوه قوي پیغامه ډک و، د شعر په نازکه ژبه د حالاتو په تصویر کشي کې تر بل هر چا مخکې و.

چې مونږ هم ډیر څه ځیني زده کړي.

په وروستیو کې یې د نثر لیکلو هنر هم ډیره ښه وده وکړه. د امارت او زمونږ د اسلامي ارزښتونو په دفاع کې یې ډیرې اوږدې او مدللې مقالې ولیکلې.

په وروستیو کې چې مطمئن صاحب کوم کتاب ولیکه (ملا محمد عمر طالبان او افغانستان) تر ټولو مهم کتاب و، که څه هم ځیني انتقادونه یې را پورته کړل او شاید تر ډیره حده معقول هم وو ، خو کتاب بیا هم ډیر ګټور او په راتلونکي کې به د تاریخ لیکونکو لپاره تر ټولو د پام او باور وړ ماخذ وي.

مرحوم مطمئن صاحب امارت ته تر پایه وفادار پاته سو، په داسې حال کې چې له امارته د باندې ډیر امتیازات ورته منل کېدل، خو تر هغو ټولو تېر سو.

کله چې د مطمئن صاحب په ناروغۍ خبر سو، دومره راته مهمه نه وه، مال شاید عادي ناروغي وي،. تېره به سي.

په همدې ورځو کې مو دده د کور خواته یو اتفاقي سفر هم برابر سو، کله چې یې کورته ورغلو او خبر سو چې سخت ناروغ دی او په روغتون کې بستر دی، نو له زړه خپه سو، بار بار مو دروغتیا دعاوې ورته وکړې، له مشرانو مو هیله وکړه چې د روغتون او کور مصارف یې په غاړه واخلي.

د امارت مشرانو ته دې خدای خیر ورکړي، د مطمئن صاحب یې ښه خدمت وکړ.

مطمئن صاحب شاوخوا یوه میاشت ناروغ و او دا ټول وخت یې په روغتون کې تېر کړ، مونږ دروغتون د سختو شرائطو له امله اجازه نه درلوده چې دی مرحوم د وروستي ځل لپاره ووینو، خو لکه چې همداسې مقدر و، بیا مو لیدل ونه سوه.

الله ج دې پر مرحوم مطمئن صاحب رحم وکړي، کورنۍ او ملګرو ته یې صبر جمیل او نعم البدل غواړو.



## #غوسه خوړل

**رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي:**

**چاچې غوسه په داسې حال کې پټه کړه چې په (پلي) کولو یې برلاسی وو، الله تعالی به یې د قیامت په ورځ د ټولو خلکو په وړاندې په حورو په انتخاب کې اختیارمند وګرځوي.**

سنن ابن ماجة_٤١٨٦




## ډاډمن لاړ

(قاري عبدالستار سعید)

یو سړی و، له جهانه ګیلمن لاړ
غریو نیولی د ګیلو لباس په تن لاړ
موږ خو وې ښایي سبا به هم دلې وي
خو ناڅوانه تلواري و، لاړو، نن لاړ
د نغمو د ترانو فصله خزان شوې
سرغنه د بلبلانو له ګلشن لاړ
د وطن موري خبره شوې که نه شوې
ورک بچی دې په ارمان ستا د دیدن لاړ
د کلام او د قلم په کور ماتم دی
چې شاعر لاړ، چې لیکوال اهل سخن لاړ
څه سرشاره د ادب دنیا ته راغی
څه بې وخته له دنیا د هنر فن لاړ
کاش، چې زړه یې وای تش کړی او بیا لاړ وای
سربسته لکه صدف لکه مخزن لاړ
د سعید په زړه کې څریکه شوله تېره
چې غږ وشو، (خپلواک) لاړلو (ډاډمن۱) لاړ

---

۱ – مطمئن صاحب به مو کله ناکله ډاډمن باله چې د مطمئن پښتو معنی ده.

## څوانیمرګ شاعر!

احمدالله وثیق

نن مي له خولې ساړه اهونه وزي
د ځوانیمرګو کاروانونه وزي

د هنر کور باندي تیاره خوره شوه
چې یې له کوره سحرونه وزي

د خیال نیلی ستا تصور سترى کړ
یوه شبېه پرې را کالونه وزي

د زړه ماڼې باندي مي اور ولګید
ایرې ایرې شوه ترې دودونه وزي

د زړګي څانګې مي کړېږي در پسې
له اسویلو سره اورونه وزی

د وثیق پیغلې هیلې شوې شهیدې
تنګو زلمو ته لحدونه وزي

## (د شاعر او لیکوال مطمئن په یاد کې)

# مفتون

د ژوند په معیارونو برابر وو مطمئن وو
خاوند د قلم توري د هنر وو مطمئن وو

د تول سزور جهان له فرېبونو بې پروا وو
ملګری د ملامحمدعمر وو مطمئن وو

د سپینې وینا سپین هدف او سپین درېز سړی وو
سپېڅلی وو د سپین کاروان عسکر وو مطمئن وو

دوخت په کړبلېچنه لار په دې تورو تیارو کې
مشال غوندې د خپل ولس رهبر وو مطمئن وو

څیرک وو او روڼ اندی، نازکخیاله وو شاعر وو
پاک زړی، ژور فکره فراخ نظر وو، مطمئن وو

هېواد ستا په غیبر کې د طالب په حاکمیت
که هر څومره بې وسه مهاجر وو مطمئن وو

په دې مشکل سفر کې له منزله مایوس نه شو
مفتونه تر اخر مو همسفر وو مطمئن وو

# د ادیب روح

م - الیاس فاتح

بلبلان که د ګلونو په وږمو مري
پتنګان هم د اورونو په لمبو مري

میَنان د وصالونو په جامونو
اجل واخلي د هجران په سرو غرمو مري

خویندې اوښکې د زړه کوره پسې وځي
په ملا ماتې شي په وره کې د لېمو مري

ته د خدای د نور هېنداره یې طالبه
د لمر وړانګې ستا د سپین مخ په جلوو مري

حق د مینې فدايي عاشق ادا کړ
ازادۍ ته د لمبو په غرغرو مري

د ملت د سوکالۍ ناوې لپاره
سرو ګولو ته سینې وړي ژبې په غرو مري

د ادیب روح په زهري خنجرو نه مري
د خوارې ژبې په دوو ترخو جملو مري

د نېمګړې ارمان کتاب مطمئن قات کړ
پسې ساندې د قلم په پردېسو مري

د زخمو یاري ژوندۍ ساته فاتحه!
د غزل ښکلا په قحط د رنګېنو مري

# مطمئن ته !

څنګه دې وکړه یو ناڅاپه له جهانه کډه
خلک نابلد و، څوک دې عشق باندې خبر نه و

مونږ هم ګڼلې وې عادي لکه د نورو په څېر
خو ستا په شانې، لوی عالم، ډک، لهٔ هنر نه و

د شهامت هم عزیمت هم د غیرت خاوند وې
شان، شوکت دې په هېڅ وخت پر زړه، مظهر نه و

د خپلواکۍ او بلواکۍ په معنا ته پوهېدې
غلیم دې مات کړ، تا ټیټ کړی ورته سر نه و

تهٔ د قلم څښتن وې تهٔ د ستر آهنګ څښتن وې
د حق له شوره دې چپ شوی منبر نه و

ستا په هر شعر کې د ننګ غیرت پیغام پروت و
ستایلی تا چېرته خال، خد، سیم او زر نه و

ته خو لوی فخر د ملت وې، مطمئنه اشنا !
پدې فنا عالم دې نور ژوندون مُقّدر نه و

ته انقلاب ته هوس مند وې، هدف دې روښان و
مدام د عشق پر لاره دې پرې ایښې دلبر نه و

وخت پوره و، مطمئن ساندې وهلې جګرخون و
ننداره د درد او ویر وه، نور اوار یې بستر نه و

د نغمو ګلشن تالا و، د ادب په کور ماتم و
غلبله وه لور په لور چېرې د توحید انځورګر نه و

د حسرت اوښکو طیب هله بیدار کړ چې
منګې مات د تغافل و او جانان په ګودر نه و

# خپلواک چې ما پېژاند

صارم

په افغانستان چې د کورنیو جګړو د وحشت بلا منګولې خښې کړې وې، د هغه وخت په مطبوعاتو (رادیوګانو) کې یواځینی ډاډ ببنونکی غږ د ملاعبدالحی مطمئن و چې د خبر او حال په بیان به یې د افغانانو زړونه ډاډه کېدل چې ښه ده بیا هم د هیواد له یوې برخې د فساد تغر ټول شوی، همدا دده نوم ته د شهرت لامل و، زه هم له هماغه وخته له دې نوم سره اشنا وم او له هماغې ورځې یې د لیدو ارمانجن هم وم. د ۲۰۰۴م کال اوائل و، د هجرت په دیار کې مرحوم استاد یاسر صاحب چې د فرهنګي کمیسیون مشر ټاکل شوی و د یوه کار لپاره ور وغوښتم، هلته په رسېدو د هغه په حجره کې ناست وم چې یو بل ناپېژانده مېلمه هم دیپلومات بکس په لاس او تورې عینکې په سترګو حجرې ته راننوت، هغه شپې ورځې ډېرې د وېرې او وهم ورځې وې او سره له دې چې په داسې ځایوکې به له خپلو خلکو پرته بل څوک نه راتوليدل، خو بیا هم حالاتو یو پر بل بدګومانه کړي وو او د شک په سترګه مو سره کتل .

نا آشنا مېلمه هم چې په خورا ټیټ غږ یې ابتدایي روغبړ وکړ، نور څه نه ویل او ځان یې د هغه وخت ساده موبایلونو په لیکنیزو مسجونو بوخت کړ. ګړۍ وروسته چې خامخا مو باید دغه سکوت مات کړی وای، هغه په حاجي کمال او ما هم په خپل ساده نوم ځانونه سره معرفي کړل، شېبه وروسته کوربه (چې هر وخت به له هرډول حالاتو بې باکه و) د مېلمنو خونې ته په راتلو له لرې نه نا بلده مېلمه د [ مطمئن صیب] په لقب مخاطب کړ، د مرحوم استاد یاسر صیب دا غږ زما او دده د بیا معرفت او اعتماد ابتداء شوه او له هماغې ورځې د غربي ښکېلاک د ځپو په وړاندې د یوې لالهانده مضطربې کښتۍ سپاره او خواږه ملګري شو، نن چې دا ده ساحل ته په نږدې کېدو ده، لکه د ډېرو نورو ارمانجنو ملګرو په څېر دی هم نیمه خوا او ارمانجن راڅخه جلا شو.

دا دی؛ د یوه سفر د دوران پر مهال مې یې د مرګ خبر واورېد چې په اورېدو مې سخت ټکان وخوړ او ټول سفر مې ویرجن شو، د ویر او غم په دغه دردمن حالت او تنهایي کې له ملګرو او دوستانو لرې خپل غم غلطوم او په فراق کې یې چې اوس د قلم له رنګ سره کومې اوښکې تویوم، هیڅکله به یې حق پرې ادا نکړم. زما په ګېون یې ډېر په قدر پوه نه شول او نن چې په مظلومیت او محرومیت رانه جلا شو، هر یو پرې ژاړو او قدر یې رامعلوم شو .

هغه یو داسې څوک چې د کار سړی بلل کېده، زمونږ او د هغه ترمنځ، داسې کوم نسبت نه و چې په فراق یې مونږ ته کومه مادي ضربه راغلې وي یا بل داسې تړاو وي چې دېته ورته بل غرض ولري، له دې پرته چې د حق په دفاع او له باطل

سره په مبارزه کې د یوه صف ملګري وو، خو دی په دې لار کې قاطع او باجرئته و او مونږ هیڅکله هغومره نه وو.

د ده په حق کې به ډېر څه لیکل شوي وي او یا به ولیکل شي، خو زه یې تر یوه حده د پور د ادا په حق کې هغه څه لیکم چې ما پکې لیدلي وو، په رښتیا هم په مونږ کې د ژوندو قدر تر هغو نه وي چې ترڅو مو خاورې نه وي پرې اړولې او هغه صلاحیتونه یې هم مونږ ته قدر نه لري چې په مرګ یې راته ضیاع شي.

لومړی هغه ضیاع چې په وفات یې مونږ ته وار له واره ورسېده، د قلم روان، خوږ او په زړه پورې هغه انځورګر سبک یې تر خاورو لاندې کېدل دي چې دی پرې ممتاز و .

خپلواک له هغو اسلامپالو، قلموالو، ادیبانو او لیکوالو ښخه و چې خپل ادبي ذوق او مینه یې له مدرسې اخیستې وه او د اسلامي تحریک په قلمواله مبارزو کې یې وده ورکړې وه، دده لوړو صلاحیتونو، په شعر او نثر کې اوږد لاس او اغېزمنو مطبوعاتي کړنو ته په کتو ویلای شو، نوموړی د افغانستان د هغو ادبي ستورو لار تر ډېره وهلې وه چې ادبیات او ژورنالیزم یې په مروجه بڼه په پوهنتون کې نه وو لوستي، یوازې له مدرسې او دیني علومو سره په تړاو د افغانستان د ادب په اسمان کې په شمار ستوري شول.

هغه پخپل خدای ورکړي ذوق او ذهن د تحریک د سرښندونکو طالبانو په کتار کې په هغو طالبانو کې راغی چې نومونه یې له لومړي سره وځلېدل همدا خدای ورکړې موهبه وه چې له هماغې ورځې یې د علم طلب نه و پرې اینبی او خپله علمي ذخیره یې په مطالعه ډېره غني کړې وه .

دیني زده کړې یې که څه هم د اسلامي تحریک بوختیاوو نیمګړې پرې اینې وې، ولې بیا یې هم پوره کړې او په رښتیا چې یو ښه مدقق ملا هم و، د خپلې هڅاندې طبعې له مخې یې په هغې اکتفا ونکړه او په دې وروستیو کې یې د انګلیسي ژبې له زده کړې سره تر څنګ د اسلام اباد په نړیوال اسلامي پوهنتون (iiui) کې د طبیعي ساینس د چاپیریالي علومو (Environmental) په پوهنځي کې داخله کړې وه او تر دریو سمسترونو یې ویلی و، سره له دې چې ده باید د سیاسي علومو څانګه او په هغه کې هم د نړیوالو اړیکو برخه غوره کړې وای، خو دا چې ولې یې د دې څانګې په ځای هغه خوښه کړه؛ شاید یوه جلا فلسفه ولري او کیدای شي دغربي اشغالګرو د اشغال اصلي موخې راسپړل دده موخه وه، ځکه د ده غوره کړې څانګه سره له دې چې په طبیعي علومو او چاپیریال پورې اړه لري، خو بیا یې هم سیاسي تړاو ورسره شته او تر ډېره په هغه څه هم بحث کوي چې مترقي هیوادونه ولې او په څه ډول خپل فضله ډیرانونه په غریبو او اسلامي هیوادونو کې غورځوي...

له کفر سره په مقابله کې د اسلام له سنګره په دفاع کې اخلاص به یې و چې د خپلواک د مرګ په خبر هر پېژاند او ناپېژاند د زړه له کومې خفه دی، ډېر داسې څوک مې ولیدل چې له ده سره یې د ناستې پاستې او پېژندګلوي هیڅ رابطه نه وه، خو د وفات په خبرېدو به یې بې اختیاره اوښکې توی کړې.

د شهید مطمئن که یوازې د ده د خپلواک لقب په خپلولو وغږېږو، ډېرې پاڼې به پرې ډکې شي، نن چې دی ګیله من له مونږه تللی، په مونږ یې حق جوړېږي چې د خپلواک مزاج طبیعي پدیده یې یو څه وزغمو او د دې لقب افادیت یې راوسپړو :

هغه ولې خپلواک و ؟ او څنګه خپلواک و ؟! په اقتصادي لحاظ خو یې که ژوند وځېړل شي نو په زغرده ویلای شو چې ډېر محتاج او لالهانده ژوند یې و، خو غرورو او استغنا یې بیا تردې حده وه چې همدې محتاجی‌د مرګ کومې ته ورکړ ولې هیچا او هیڅ مقام ته یې د مرستې لاس نه دی

غځولی او په یو جلا استغنایي او استثنایي انداز یې ژوند تېراوه.

د خپلواکي بل اړخ یې د فکر او خیال خپلواکي وه، د خپل فکر په لړلو او پاللو کې هیڅ قسم اغېز اوتأثر ته تسلیم نه و، په تېره د قلم او مطبوعاتو په برخه کې خو ډېر خپلواک و او هیڅکله په هغه محدوده کې نه راته چې د قلم د انحصار او کلابندۍ لپاره به د وخت او شرایطو غوښتنه هم وه.

د ده خپلواک مزاج ده ته هغه شوخي ورکړې وه چې د ډېرو نه خوښېده، خو دی پرې خپلواک و .

هغه د کفر او اشغال په وړاندې په مطبوعاتي مبارزه کې هم خپلواک و او د کمیسیون په چوکاټ کې له رواني مبارزې یې جلا رنګ درلود .

دده د یو جلا ډول ژوند په خم وپیچ کې تر ټولو مهمه دا چې له خپلو ټولو هغو حالاتو، تنګو شرایطو او احتیاجه چې دی ورسره لاس و ګرېوان و، بیا هم خپل صف ( د افغانستان اسلامي امارت یا د طالبانو اسلامي تحریک) ته په ټوله معنی ژمن او متعهد پاته شو او په رښتیا چې د اسلامي تحریک اصیل بچی و ، تر دې چې هغو اشارو او شنو ځراغونو ته یې د سترګو له کونجه هم ور ونه کتل چې له شاوخوا لوریو ورته بلېدل او کاملاً یې د یوه طالب په معنی ژوند وکړ هغه نه یواځې دا چې خپل صف او خپلې داعیې ته ژمن پاته شو، بلکې په خورا ښه ډول یې ننګه او دفاع هم ترې وکړه.

د(ایمان زریني وړانګې) ترجمه کړی اثر یې چې سړی ګوري، د قلم قوت او تعبیر ته یې سړی حیران شي، له ما سره په مخ کېدو به تل زما ټینګار پرې دا و چې یو ښه علمي اثر ترجمه کړه په تېره که په نبوي سیرت کې دې کوم خوږ تالیف ترتیب اویا ترجمه کړ، وعده به یې راسره کوله خو دا ځل مې چې د بیا لیدو په تمه په دې اړه کومه کلکه اراده کړې وه چې تر اوسه زیات به یې پرې مجبوروم؛ مرګي د ده ځواني او زما هیله دواړه نیمه خوا کړل او اوس یې فراق دا ویره دنیا دومره راباندې تنګه کړه چې په یاد کې یې له دې ځو ټکو پرته ما هیڅ راټول نه کړای شول .

تملق او چاپلوسي یې عادت نه وه
سپین ګویه سپین سړی له مونږه ولاړ



## یونس قانونی:

در صورت که جنگ در کشور ادامه پیدا کند، «مقاومت دوم» شکل خواهد گرفت!

## یک گپ:

همی آدم به چه تعداد هوادار دارد که همیشه از زور خود بالا حرف می‌زند؟ قسم خدا بغیر از چند تن پسرانش،اگر ۵ تن دیگر را جمع کرد من خود را به دارد میزنم . یک رقم از مقاومت دوم حرف می‌زند،فکر می کند که مردم گوسفند باشند،درحالیکه سال ۲۰۲۱ شده است و همه ی شهروندان کشور با چهره ی این معامله گران آشنایی کامل پیدا کرده اند .




# د قطر سره ناخاپي مقاطعه

شهیدزوی

# او اوس ناځاپي سوله ولې؟

دنوي ۲۰۲۱م کال د رواني جنوري میاشتې په ۵ مې نېټې د سعودي عربستان په العلاء کې دخلیجي هېوادونو ۴۱مه سرمشریزه غونډه جوړه شوی وه چې له نېکه مرغه دغونډې مرکزي هدف ترلاسه او دقطر سره دنورو خلیجي هېوادونو ۳نیم کلن پرېکون پای ته ورسېد.

په غونډې کې دقطر د امیرشیخ تمیم بن حمد آل ثاني په مشرۍ کې دقطر یو دروند وفد ګډون وکړ چې دسعودي ولی عهد شهزاده محمدبن سلمان یې د استقبال په موخه تر هوايې ډګره ورغلی و.

که څه هم کرونا جدي وه او احتیاطي تدابیر نیول شوي وو خو بیا هم دسترې مشې پرمهال محمدبن سلمان شیخ تمیم ته تینګه غېږ ورکړه؛ دا دې لورته اشاره وه چې په راتلونکي کې سعودي دقطر سره له زړه نه ښې اړیکې او دوستي غواړي.

محمد بن سلمان په خپل موټر کې چې پخپله یې موټر چلاوه دقطر امیر شیخ تمیم د العلاء تاریخي ځایونو بانديې هم وګرځاوه؛ یوځای یې سره عکسونه واخستل؛ هر څه دکامرې سترګې ثبت او په ډېر اهتمام ټول شیان دسعودي په ټولو رسنیو کې خپاره شول.

دسعودي عربستان واکمنانو او ولس دواړو پدې سولې ډېره خوښي څرګنده کړه؛ دقطر او سعودي رسمي رسنیو ښه وځلوله او په سوشل میډیا کې هم د دواړو هېوادونو ولسونو لپاره تر ډېرو ورځو ډېره په زړه پورې او تر ټولو لویه موضوع وه خو د قطر او سعودي عربستان پرته نور هغه خلیجي هېوادونه چې دقطر سره یې پرېکون کړی و پدې سوله دومره خوښ نه ښکارېدل څومره چې پکار وه.

عمان خو لا له وړاندې دیو لوري ملګرتیا هم نه کوله او د کویت رول هم دمنځګړي و او همدا د کویت مسلسلې هڅې وې چې ستونزه حل او پرېکون ته دپای ټکی کېښودل شو.

په ۲۰۱۷م کال کې دقطر سره په پرېکون کونکو هېوادونو کې له سعودي وروسته دعربو متحده ایالات، مصراو بحرین ډېر پېش پېش وو ؛ خو د العلاء پدې غونډه کې د مصر ولسمشر السیسي ګډون ونکړ بلکې په استازیتوب یې دې غونډې ته د باندنیو چارو وزیر سامح الشکري راغلی و.

د دوبۍ حاکم محمد بن راشد آل مکتوم او د ابو ظهبۍ ولي عهد محمد بن زاید آل نهیان په غونډه کې ګډون کړی او

د قطر دامير سره يې ليدلي هم و خو عربو رسنيو کې د دوئ دليدنو تصاوير يا ويډيوګانې خپرې نه شوې او نه هم پدې اړه راپورونه خپاره شول؛ داسې معلومېږي چې له سعودي پرته نور عرب هېوادونه پدې سوله له زړه نه ندي راضي او نه هم د قطر له کړنلارې نه مطمئن دي.

قطر دخليج شورى رکن دى

؛خليج شورى کې يواځې هغه عرب هېوادونه غړيتوب لري چې دفارس خليج سره يې پولې لګېدلی دي يانې بحرين ، عراق ، کويت ، اومان ، قطر ، دعربو متحده امارات اوسعودي عربستان .

دټولو عربوخليجي هېوادونومهمې پرېکړې دسعودي دپرېکړوسره هم غږی وي اوهيڅکله دسعودي دکومې پرېکړې سره مخالفت نه ښکاره کوي

خو د قطر ټوله اقتصادي اوبهرنۍ پاليسي دسعودي داغېزواو نفوذ نه ازاده ده اوخپل ټول معاملات دهمدې ازادې پاليسۍ له مخې پر مخ بيايي نو نور زياتره عربي هېوادونه حماس او اخوان المسلمين ته د دښمن په نظر ګوري؛ تروريست غورځنګونه يې بولي او د ځپلو طرفداران يې دي خو د قطر دولت لا له وړاندې داخوان المسلمين اوحماس مبارزه سمه بولي او ددې دواړو تنظيمونوځني مهمو مشرانو ته يې په خپل هېواد کې پناه هم ورکړيده ځکه چې د قطر واکمنان اصول خوښونکي دي او حق او صداقت نه دچا په وينا ردوي او نه يې هم دخپلو غوښتنو قرباني کوي.

دنشنلزم او بعثي افکارو پر ضد دکلکې مبارزې او اسلامي نظام د غوښتنې له امله اخوان المسلمين ؛ دعربوټول حاکمان دخپلو واکمنيو لپاره يوخطر ګڼي نو نه يواځې داچې مخالف يې دي بلکې ځپل اوله منځه تلل يې غواړي؛ اخوان المسلمين دې هېوادونو کې تل دسخت عتاب لاندې وي اوسره له ډېرو

**ډېر داسې نامسلمان دولتونه هم شته چې دحماس مبارزه حقه اودملګرو ملتونو د اصولوسره برابره ګڼي خو چې دا غورځنګ د اسلامي نظام او جهاد نوم اخلي نوعرب شاهان او ديکتاتوران يې دخپلو واکمنيو لپاره خطرګڼي**

اوړدو کوښښونو اوقربانيو داګوند په کوم عربي هېواد کې دسياسي نظام په بدلولو نه توانېږي.

اوچې امريکا همداګوند دتروريستوګوندونوپه ډله کې داخلوي نودسعودي په شمول ګڼ عربي هېوادونه دامريکا داپرېکړه ښه په اخلاص استقبالوي .

څو کاله وړاندې په مصر کې دهغوانتخاباتوله لارې محمدمرسي واک ته ورسېدلو کوم چې دغربي نړۍ په اند واک ته درسېدو ترټولومقبوله لارده اويواځې دهمدې لارې رامنځته شوی حکومت په حقيقت کې قانوني حکومت ګڼل ؛ خوچې کال پس ورباندې جنرال السيسي فوځي کودتا وکړه نو سره له دې چې دخلکوپه سترګوکې دخاورو وراچولولپاره دلويديځ يوشمېر دولتونو دنفاق نه په ډکو الفاظوددې کودتا غندنه وکړه خوعربو دولتونو دا ناروا اقدام ستايلو؛ د السيسي په لاس چې دمصر دمظلومو مسلمانانوعامه وژنه کېدله اودمېرمنوپه شمول په لسګونو زره تنان زندانونوته وړل کېدل عربو حاکمانو يې په ډېرې خوښۍ نظاره کوله ، جنرال السيسي يې په ملا ټپولو او ورته يې دملياردونو ډالرو مالي مرستو اعلانونه کول.

په ښکاره ټول عربي دولتونه داوايې چې ديهودو دقبضې نه دمسلمانانو دړومبۍ قبلې ازادول غواړي اودايې



يولوى مرام دى ؛ دشيخ ياسين رحمه الله تعالى په لاس جوړ شوى حماس دهمدې قبلې دازادى لپاره داسرائيلو پر ضد سپيڅلې اومؤثره مسلحه مبارزه روانه ساتلى ده اوددې حقې سپيڅلې مبارزې دکاميابى لپاره دغزې مسلمانان ډېرې سترې قربانۍ ورکوي ؛ مسلمانان خو مسلمانان دي، ډېر داسې نامسلمان دولتونه هم شته چې دحماس مبارزه حقه اودملګرو ملتونوداصولوسره برابره ګڼي خو چې دا غورځنګ داسلامي نظام اوجهاد نوم اخلي نوعرب شاهان او ديکتاتوران يې دخپلو واکمنيو لپاره خطرګڼي؛

ددې غورځنګ افکار هم داخوان المسلمين افکاروته ورته بولي نو په هرډګرکې يې پرضد مخالفت ښکاره کوي اوآن داسرائيلوپه لاس چې څپل کېږي او وژل کېږي نوپړې ښه خوښ وي ؛که په غزې داسرائيلوديوې مياشتې نه د زياتومسلسلوبمباريوپه نتيجه کې ټوله غزه تباه کېږي اوپکې دمېرمنو اوکوچنيانوپه شمول په زرونومظلوم مسلمانان وژل کېږي ياټپيان کېږ ي ددې شاهانو پرې هيڅ چرت نه وي خراب اوکه په کلونو داسرائيلوله لورې دغزې محاصره روانه وي دوئ يې هيڅ پروانه ساتي او نه يې پرضد کوم اواز پورته کوي .

بس په عربي نړۍ اوبيا خصوصاً خليجي هېوادونوکې يواځې قطرداسې دى چې دحماس او اخوان المسلمين په اړه يې کړنلاره دسعودي اونورو عربي هېوادونوتابع نده ؛ پدې دواړو کې يوهم تروريست تنظيم نه ګڼي اونه يې تر اوسه پرضد دچانارواکړنې تائيد کړيدي اوچې کله ددې دواړو غورځنګونودخپلوهېوادونونه شړل شويو غړو دقطرنه دسياسي پناه غوښتنه کړيده نو قطر ورته خپله غېږ پرانستې ده اوښه په قدر يې پناه ورکړيده؛ دقطر داپناه ورکول چې دنړيوالو اصولونه خلاف نه ده نو لويديځې نړۍ پرې هم کله اعتراض ندى کړى اونه يې هم کله دقطر نه غوښتي دي چې دخپل هېوادنه دې دحماس يا داخوان المسلمين داغړي وشړي خودسعودي عربستان ؛ دعربومتحده امارات ، مصراو بحرين په څېر عربي هېوادونه په قطرکې ددوئ شتون دتروريزم سره دقطر همکاري بولي او غواړي چې له قطر نه دوئ وشړل شي .

نو لنډه داچې داخوان المسلمين او حماس په اړه دسعودي دپاليسۍ نه تعقيبول دقطر نه دسعودي او نورو عربو هېوادونو دنارضايت او د نا رضايت په نتيجه کې درامنځته شوې مقاطعې ږومبى او ستر لامل و.

دقطر په اړه دشيخ تميم هيله داوه چې قطر دې په منځني ختيځ کې لکه دسويس ناپيلى هېواد وي.

دقطر الجزيره تلويزون دامريکا سى اين اين په طرز جوړشوى يوداسې تلويزون دى چې دعربۍ او انګليسي ژبو پرته هم په ځينو ژبو نشرات کوي ؛ داسې کم خبراوموضوع به وي چې ددې چېنل لاس رسى ورته نه وى شوى نو ځکه يې تبصرې او شننې په عربي نړۍ ډېرې جورې اغېزې لري.

دازاد جورنالیزم کوم مقام چې دې تلويزون ترلاسه کړى په عربي نړۍ کې يې سارى نه ترسترګو کېږي اوپه کم وخت کې چې ورته کوم مقبوليت ورپه برخه شوداهم سارى نه لري .

الجزيره چې دخليجي هېوادونو په اړه ښه آزادانه راپورونه خپروي؛ سعودي اونوروخليجي هېوادونو يې په اړه خپله دا انديښنه ښکاره کړيده چې ددې تلويزون له لارې ددوئ په کورنيو چارو کې لاسوهنې کېږي اوله دې لارې يې دهېواد امن اوثبات ته خطرونه متوجې کېږي نوبايد له دې کار نه قطرتېر شي خوقطر تل دمطبوعاتو دازادى خبره رامخې ته کړيده اوهمدې اصل ته په پناه ور وړلوېې ددوئ ددې اعتراضونو نه په ښکاره خپل ځان خلاص کړى .

نو دالجزيره تلويزون د قطر او نورو خليجي هېوادونو ترمنځ دخفګان يو بل مستقل لامل دى.

ايران ته قطر ددښمن په نظر نه ګوري اونه يې هم په داسې نومونو يادوي لکه سعودي اونور خليجي هېوادونه يې چې يادوي؛ چې همدا د سعودي په شمول دټولو خليجي هېوادونو دخفګان بل ستر لامل دى .




لـه تېرې یـوې نیمې لسـیزې راهیسـې ایـران اودایـران همفکـرو قوتونوتـه لـه یـوې خـوا پـه ټولې سیمې کې دازادانه فعالیت موکه ورکـړل شـوه چې لـه امله یې دیمن نه ترشام پورې خونړی جنګ رامنځته اوټوله سیمه بد امنه شوه ؛ له بلې خـوا دامریکـا اونـور لویدیځ اصـل واکمنـانو داوبامـا اداره دایـران داتـومي وسلودلانجمنې موضوع په اړه ټرون کولوته آماده کـړه چې له امله یې دایران دولـت پـه سـختې غلـط فهمـی کې اخته شو ؛ ایران فکر وکـړ چې ګینې دامریکـا پـه خېر سترځواک یې هم په وړاندې سر ټیټولوتـه اړ شـو او پـه سیمه کې یې دایران ځواک ومنلوخو چې څنګه داوبامـاداواک موده ختمه شوه نـو هرچـا تـه معلومـه شـوه چې دایـران سره رامنځتـه شـوی تـړون پـه ښـکاره تـړون خوپـه حقیقـت کې سراب و چې دټرمپ دراتلوسره سم په هوا کې تحلیل شو.

داچې ایران ته په سیمه کې دفعالیت دمو کې ورکولـو لـه امله دایران نفوذ دلبنان نه پـس عـراق ، یمـن اوشـام تـه هـم وغځېدلو؛ دلتـه دایـران خپلې ملېشې پـه جنګ کې دخیلې شـوې او دایـران وفـادارانو لـه همـدې ځـایونو نـه دسـیمې دهېوادونو ګوانښ پیل کړل نو دسعودي پـه شـمول ټولوسـني عربو هېوادونو ایران خپل اصل خطر او اصـل دښـمن وګڼلـو او په خپلو منځونو کې یې سره دا خبره غوټه کـړه چې وجـود ته یې اسرائیل نه بلکې ایـران سـتر خطـر دی نوهمـداده چې اتحادونه هم دایران او دایراني نظر پر ضـد جـوړېږي ؛ وسلې هـم دهمـدې لپـاره اخستل کېږي چې دایـران نـه پـرې ځـان وساتل شي اوامریکاته نزدېکت او ورسره د دوستۍ پالل هـم ددې لپار دي چې په ښکاره اوس امریکا دایران مخالفـه ده او داسې ښکاري چې نور په سیمه کې دایران مخه نیول غواړي.

نو دعربو سني هېوادونـو او او تـرمنځ دائمي دښـمني او ددې دښـمنۍ پالـل دمنځنـي ختـیځ دامنیـت او ثبـات لپـاره ترټولو خطرناکه خبره ده .

ټرمپ چې په ریاض کې ودرېږي او ایـران تـر ټولـو لـوی خطر ګڼې نـودا دهمـدې دجالي لـوبې برخـه ده ګڼي ټرمپ داخبره په واشنګټن کې ولې نه کوي ؟

دیادو همدغوعواملو دشتون له امله سعودي اونور غړي خلیجي هېوادونه دقطرنه خفـه وو او پـه ۲۰۱۴م کې د قطـر سره دخلیجي هېوادونو اختلافات دومـره زیـات شـول چې سعودي عربستان، بحرین اودعربومتحده امـاراتو دقطـر سـره خپلې دیپلوماتیکې اړیکې پـرې کـړې وې خـو ښـه داوه چې هغـه مهـال د قطـر پـه هـوایې شـرکتونو بنـدیز نـه ولګېـدلی اودکویت امیرشیخ صباح چې دقطر دامیر سره یـې شخصـي ښې اړیکې درلودلې منځګړیتوب وکـړ او دشـیخ صـباح د ۸ میاشتومسلسلوهڅو په نتیجه کې حالات بېرته نورمال شول.

خوداځـل خبـره ډېـره حیرانـونکې وه؛ مقاطعـه ډېـره ناڅاپي او داسې هر اړخیزه وه لکه د قطر پرضد چې دجنګ اعلان کېږي.

په شپه شپه کې بې له کوم اخطار یـا خبـر ورکولـودقطر پرضد پرېکړې اعلان اوپـه هماغـه شپه کې یـې نافـذې هـم کـړې ؛ دیپلوماتـان خپلوهېوادونـو تـه راوغوښـتل شـول؛ سوداګریزې راکـړې ورکـړې بنـدې شـوې؛ سـرحدات وتـړل شول ؛ دیوبـل دهـوایې کرښـو کـارول منع اعـلان شـول او د سعودي په مشرۍ کې دجوړ شـوي اسـلامي فـوځي اتحـاد نـه هـم قطروویسـتل شـوحال داچې قطـر دیمـن پـه جنګ کې دسعودي ډېر مهم اتحـادي و او ددې پرېکـړې نـه ۲۰ ورځـې وړاندې یانې د۲۰۱۷م کال د مئ پـه ۲۰ مې او ۲۱ مې نېټې چې دسعودي عربستان په پلازمېنې ریاض کې کومـه غونـډه جوړه شوې وه اوپکې راټول شوي ټول عـرب مشـران دایـران مخالف فریق ګڼل کېدل په هغه غونـډه کې نـه یـوائې داچې دقطرامیر شیخ تمیم بن حمد آل ثانی شتون درلود بلکې هغـه

له هغو مشرانوځنی و چې دغونډې دمشر میلمه ډونلډټرمپ سره دلیدنې موکه هم ورکړل شوی وه؛ شیخ تمیم دسعودي باچا سلمان اونه هم دهغه دځوی محمدبن سلمان په تندي کې د خفګان کومه نښه لیدلی وه . خو۲۰ ورځې پس دهمدې قطر سره ناڅاپه خبره دخرابۍ دې حد ته ورسېده چې دسعودي ، متحده عرب اماراتواومصر په شمول ورسره ۷عربوهېوادونو ټولې اړیکې پرې کړې؛ دا ولې ؟

خبره دا ده چې د سعودي عربستان له اغېزو نه د قطر آزادي او په خپلې ارادې خپله بهرنۍ پالیسي پر مخ بیول د سعودي لپاره هیڅکله د منلو وړ نه وه ځکه خو یې له دې وړاندې هم یو ځل دقطر سره پرېکون کړی و او د قطر پرضد دښه جدي اقداماتو غوښتونکی و خو دا چې د قطر سره امریکا ښې اړیکې لرلې او د اوباما د واکمنۍ پر مهال د امریکا او ایران په اړیکو کې نسبي ښه والی راغلی و سعودي عربستان هم د قطر پر ضد له کوم اقدام کولو ډډه کوله کله چې د اوباما واکمني پای ته ورسېدله اوټرمپ درياض په کانفرانس کې دګډون په موخه سعودي ته سفر وکړ نو خبره ټوله دټرمپ دسفرنه خرابه شوه ؛ په ریاض کې ټرمپ ودرېد اوښه په جهر یې ایران تروریزم ته وده ورکونکی هېواد وګڼلو او دایران په اړه یې دسعودي پالیسي تائید کړه؛ نودا سعودي ته ددې خبرې څرګند پیغام و چې باید دقطر پر ضد اقدام وکړي ځکه چې قطر دایران سره ښه روابط لري .

د مقاطعې نه پس ټرمپ ویلي و چې دقطر سره مقاطعه سعودي ته دده دسفر ثمرات دي ځکه چې هورې دتروریزم دتمویلونکوهېوادونو پر ضد دیولړ اقداماتویادونه شوی وه.

سعودي هم په صراحت سره ویلي و چې قطر دایران سره په ملګرتیا دتروریستي ګوندونو مرسته کوي .

درياض کانفرانس کې شویو تقریرونو او اعلامې ته په پام سره دیمن نه تر شام پورې دټولوبد امنیو پړه هم پر ایران وراچول شوی وه اود اوباما دواکمنۍ پر مهال چې دامریکا له لورې دایران پر وړاندې کومه نرمي ښکاره شوی وه هغه هم ټرمپ رد کړه او یوځل بیاپه ښکاره ایران دامریکا لپاره ددښمن هېواد حیثیت غوره کړ .

اوس چې سوله وشوه او حالات بېرته عادي کېږي دا ډېر ښه زیری دی خو مهمه پوښتنه دا ده چې د ۲۰۱۷م کال په جون میاشت کې چې د قطر سره پرېکون کېدلو

**نو د قطر سره د بېرته روابطو جوړولو لپاره دې هېوادونو ۱۳ شرطونه وړاندې کړي وو چې د ایران سره د ډیپلوماتیکو اړیکو راکمول، د الجزیره تلویزون بندول، دترکې سره د نظامي تړونونو لغوه کول، د اخوان المسلمین او حماس سره روابط ختمول، دقطر نه ددې دواړو غورځنګونو دمشرانو شړل یکې عمده شرطونه وو چې دا یو هم ندی منل شوی نو بیا ولې سعودي د قطر پر ضد مقاطعه ختمه کړه ؟**

اصل خبره داده چې دسیمې په اړه دسعودي اوسنی کړنلاره دسختې ناکامۍ سره مخامخ ده چې لوی لاس یکې د امریکا دمنافقت او د امریکا په هکله دسعودی عربستان بې ځایه خوش باوري ده؛ امریکا ایران خپل دښمن ګڼلو خو د همدې امریکا په شتون کې لبنان، عراق، شام او یمن د ایران دنفوذ سیمې وګرځېدې؛ په سعودي کې دامریکا دتوغندو ضد نظام شتون لري اوسعودی یې په بدل کې هره میاشت امریکا ته په سونو ملیونه ډالر ورکوي خو بیا هم پر سعودي توغندویې بریدونه کېږي او د ارامکوپه څېر د سعودي سترشرکتونه په نښه کېږي؟! دقطر پر ضد اقداماتو ته یې سعودي هڅولو؛ د مقاطعې پدې ستر اقدام یې دسعودی ستاینې کولې خو پخپله یې د قطر خپل روابط له پخوا هم زیات ښه کړل؛ د اسلامي امارت سره په دوحه کې مذاکرات او بیا همدلته د تاریخي تړون درامنځته کېدو له امله قطر دستر نړیوال حیثیت څښتن شو خو بر عکس سعودی منزوي شو.



بله داچې قطر چې له ۳ خواوو دفارس خلیج اوبو راګېر کړیدی، یوائې د سعودي عربستان سره د وچې له لارې وصل دی او کابو۵۰ سلنه خوراکي مواد او د اړتیا وړ نور شیان یې د همدې لارې خپل هېواد ته راواردول او همدا ورته ترټولواسانه او کم مصرفه لار وه؛ سعودي تمه لرله چې پر قطر ددې لارې دتړل کېدو له امله به قطر ډېر ژر د قحط سره مخامخ شي.

دقطر هوایي شرکتونه چې دنړۍ په سطحه ړومبی مقام لري دقطر داقتصاد ډېره مهمه منبع ده؛دسعودي عربستان، بحرین او دعربو دمتحده ایالاتو دبندیز نه پس قطر ترهوایي محاصرې لاندې راغلو له ایران پرته پرې ټولې هوایي کرښې بندې شوې او یادو هېوادونو فکر وکړ چې قطر به له دې امله دسخت اقتصادي بحران سره مخامخ شي او زموږ ټولې غوښتنې به په ټیټ سر ومني.

قطر دیادو هېوادونو په مقابل کې دسختې لهجې کارولو او سنګر نیولو نه ډډه وکړه ؛ په لفظي شخړې کې دوخت ضایع کولو،دخپلو مخالفینو په مخالفت کې دزیاتوالي راوستلو او دځان لپاره د لازیاتو ستونزو پیدا کولو پرځای یې چوپتیا غوره وګڼله؛خپله ټوله توجو یې داقتصادي مشکلاتو مخنیوي اوپه ښه طریقې دخپل نظام چلولوته راواړوله خو ددې ترڅنګ په خپل موقف هم کلک ودرېدلو؛ د دوئ یو فشار ته یې هم سرټیټ نکړ او دخپل معقول موقف نه یې هم دفاع وکړه او هم یې په نړۍ کې دخپلو حامیانو دزیاتولو لپاره هڅې ګړندی کړې.

دا چې دقطر پرضد دا ټول اقدامات دایران سره دقطر دښو روابطو درلودلو له امله رامنځته شوي وو نو ایران هم دموکې نه په استفادې دخپلو حریفانو دپلانونو دناکامولو لپاره جدي هڅې پیل کړې؛قطر سره یې په اړیکو کې لازیات وسعت راوست او دایران دخوراک وزارت دیو کامیاب پلان له مخې د سمندر له لارې قطر ته دزیاتو خوراکي موادو او اړتیا وړ شیانو واردول پیل کړل؛نو سعودي او اتحادیانو یې چې ګومان کاوه هغسې ونه شوه ؛ نه خو قطر دقحط سره مخامخ شو او نه هم داقتصادي بحران سره مخامخ شو .

سره له دې چې د قطر پر ضد د هر اړخیزې مقاطعې اقدام او بیا تر ۳ نیمو کلونو پورې ددې مقاطعې غزول ډېر نا مناسب کار و چې باید سعودي او متحدینو یې نه وای کړی خو اوس چې سعودي سولې ته زړه ښه کړ؛ کویت پدې لار کې اوږده ثالثي وکړه او سعودي او اتحادیان یې د سولې لپاره د لګول شویو شرطونو نه تېر شول یا لږ تر لږه پدې اړه یې اعتراض را پورته نکړ دا ټولې خبرې ددې دلیل دی چې دا هېوادونه د امریکا په منافقت او دخپلمنځي اختلافاتو په تاوانونو پوه شویدي او اوس د دښمنیو او اختلافاتو نه ځانونه خلاصول غواړي چې دا ډېره ښه خبره ده.

د ایران، سعودي؛ او دمنځني ختیځ د ټولو اسلامي هېوادونو نه دټولې اسلامي نړۍ هیله داده چې نور د استعماري طاقتونو دشومو پلانونو ښکار نه شي ؛ دیوبل په مقابل کې د دښمنۍ ښکاره کولو هلاکونکی کلتور پرېږدي ؛ هرجانب حقایق ومني ؛حق ته غاړه کېږدي ؛ په منځني ختیځ کې د اختلافاتو، بد امنیو او کورنو جنګونو په له منځه وړلو کې په اخلاص خپل رول ادا کړي؛ د وحدت رامنځته کولو لپاره کار وکړي اودنورو جنګونو او اختلافاتو درامنځته کېدو مخه ونیسي . پای

# پردیسې ساندې مې وهلې . . . نه وې!



**( د مطمئن یاد )**

هیڅ مو فکر نه کاوه چې هاغه شوخ شاعر او زغرد لیکوال به دومره ژر له مستۍ او غورځنګه لویږي. مګر نن دا دی په سرو سترګو دا خبر لولو چې د طالبانو پخوانی ویاند ملا عبدالحی مطمئن له فاني دنیا کډه شو. د مطمئن صاحب له دې ناڅاپي تګ سره ښایي چې سرۍ یې په هماغو الفاظو مخاطب کړي. کوم چې نوموړي کلونه وړاندې د هیواد په شمال کې خپل یوه ورک طالب ملګري ته لیکلي وو:

پردیسې ساندې مې وهلې. . . نه وې!
ګرانه هر خوا مې لټولې . . . نه وې!
د ژوند ډیوه دې چا وژلې، که څه؟
چې پتنګانو ننګولې . . . نه وې!
زهیر تصویر مې دې په خوب کې لیدی
په ویښتابه به رانه تللې. . . نه وې!
ستا د لټون په دې غمجن سفر کې
په هر رباط مې یادولې. . . نه وې!
خوار مطمئن دې تر همدې ساعته
د پلونو خاورې مچولې . . . نه وې!

هو کې، مرګ حق دی او رضا بالقضاء د ایمان برخه ده. دمطمئن صاحب به همدومره ژوند مقدر و. ها دپښتو لنډۍ ده چې:

که دیوالګی وای ما به رنګ وای
کله رنګیږي وهل شوي قلمونه

الله تعالی دې په مطمئن صاحب رحم وکړي. الله تعالی دې ورته دغه اوږد سفر آسانه کړي. او الله تعالی دې د نوموړي کورنۍ او بچیانو ته د دې دروند غم د زغم توان ورکړي. انا لله و انا الیه راجعون

مطمئن صاحب هغه څوک و، چې زما په شمول د طالبانو د حرکت دوهم نسل اوریدلی ډېر، مګر لیدلی لږ و. هغه وخت چې پر افغانستان د اسلامي امارت واکمني وه، نږدې هره ورځ مو له بي بي سي، امریکا غږ او نورو راډیو ګانو د ملا عبدالحی مطمئن نوم اورېد. انسان ته الله تعالی د تعبیر بیلابیل استعدادونه ورکړي.

څوک په خبرو کې قوال او څوک په لیکلو کې فعال وي. خو ډېر کم داسې پېښیږي چې د تېرې ژبې خاوند دې د تېره قلم څښتن هم وي. ملا عبدالحی مطمئن چې هغه وخت یې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د ریاست نه علاوه د امارت ویاندۍ وظیفه هم ترسره کوله. که له یوې خوا یې د نطق، ځواب او استدلال په ډګر کې نوم ایستلی و، بل اړخ ته یې قلم هم په پوره استادۍ چلاوه او علاوه لا دا چې قلم یې د نثر او شعر په دواړو ډګرونو کې موازي او مثالي روان و.

د مطمئن صاحب سیاسي تحلیلونه او مرکې هغه وخت له نړیوالو راډیوګانو خپرېدې. ترانې یې ملا فقیر محمد درویش، قاري فضل الدین سراجي او نورو ترانه خوانانو زمزمه کولې او له غزلونو علاوه لنډې کیسې او ځینې نورې لیکنې به یې په خلافت، کندهار، شریعت او نورو نشریو کې خپریدلې.

د مطمئن صاحب شعر د نوموړي د مزاج په شان له ځانګړې رنګارنګۍ څخه برخمن و. د جهاد او هیواد مینه، عشق او حماسه، طنز او تراژیدي او ډیر نور څه د مطمئن صاحب په شعر کې یو ځای ځلیدل. په یاد مې دي چې په

هماغـو کلونـو کـې بي بي سي یـو ځـل خپـل ادبي پروګـرام (پیلوځی) د نوموړي سره پـه شـعر او ادب خـبرو تـه ځـانګړی کړی و او د مطمئن صاحب په غزلو يې تنقیدي بحث وکړ.

لکه چې وايي:

نه تنها عشق از دیدار خـیزد

بسا کین دولت از گفتار خیزد

مطمئن صاحب مو لیدلی نه و، خو اوریدلی مو دومـره و، چې د نوموړي له شاعری، کیسـو او د غـږ لـه کیـف څخـه مـو نوموړی په آسانه مجسم کـولای شـوای. مـوږ یـې د لیـدلو پـه ارمان و چې په هیواد د یرغل او دموکراسـۍ بـلا رانازلـه شـوه. دغه وخت د مطمئن صاحب شعرونه هـم د حـالاتو د شـدت او حدت په تقاضا ډېر توند شوي وو چې کلـه ناکلـه بـه پـه څـرک مجله کې په مخه راتلل.

چا زمـــوږ د وینـــو په بـــدل کې ډالر واخــــیستل

څوک په منبر ناست چا په مورچل کې ډالر واخیستل

او يا دا چې

هغـــوی بـــه څرنګـــه وجـــــدان ســـاتي

چـې کابـل جـان پـه بابـا جـان سـاتي

ښـايي چـې ټولـه شـتمني يـې لـوټ شي

څـوک چـې پـه غلـو د کـور سـامان سـاتي

کـرزی چـې نـن ځـان پـه پردیـو سـاتي

ښـکاري لـه خپلـو خپـل ګریـوان سـاتي

زمريـــانو يـــووړه دنګـــو غـــرو تـــه پنـــاه

د غـــزا ورځ تـــه خپـــل ايـــمان ســـاتي

خپلواکـــه نشـــته، خپلـــواکي هيـــواد كـــې

د ارګ مـــانۍ هـــم انګريـــزان ســـاتي

په دې وخت کې مطمئن صاحب د خپلواک او کله ناکلـه د نرګس بې زړه په نوم شعرونه لیکـل او تحلیلي لیکنـې بـه یـې د کمال یا خپلواک پـه نـوم خپرولـې. د مطمـئن صـاحب سیاسي لیکنې او مقالې هم د نوموړي د شعر غوندې بیلوونکې ځـانګړنې درلودې چې د نوموړي د لوړ استعداد غمازي يې کوله.

په هماغو کلونو کې یوه ورځ د اسلامي امارت د فرهنګـي کمیسیون له یوه کـارکوونکي ( نبیـل صـاحب) سره ناسـت وم، غالبـا د اخـتر ورځـې وې. نبیـل صـاحب یـو ټیلفـوني مسـیج راښکاره کړ، چې رالیږونکي ورته لـیکلي وو( اخـتر مـو مبـارک شه! په حاجیانو او ترهګرو کې حساب شئ!) دا چې هغه وخت د ترهګرۍ او ترهګرو موضوع په رسنیو کې خورا ګرمه وه، دې طنزیه مبارکۍ ته مو ډېر وخندل. او بیا چې مې پوښتنه وکـړه چې دغه طناز څوک دی، ویل یـې خپلـواک صـاحب (مطمـئن) رالیږلې. مطمئن مې چې وروسته ولید، د خپلو شعرونو په شان د منفرد شخصیت خاونـد و. نومـوړی چـې پـه راډیوګـانو کـې څومره رسمي غږېده په مخامخ مجلس کـې دومـره رسـمي نـه ایسېده.

په وروستیو کلونو کې د مطمئن صاحب د یادونې وړ کار د نوموړي هغه کتاب دی چې د طالبـانو د تحریـک پـه اړه یـې لیکلی دی. د دغه کتـاب خپریـدل پـه ولاړ ډنـډ کـې د ډبـرې ویشتلو په شان وو چې په هره خوا یـې څپـې خپـرې شـوې. تـر اوسه د طالبانو له منځه هیچا د دې خوځښت په اړه څه نـه وو لیکلي او دا هغه سکوت و چې یوازې د مطمئن صاحب غونـدې چا ماتولی شوی.

په وروستیو کلونو کې مو مطمئن صاحب بیا بیا لید. څـو ورځې وړاندې یې د سختې مریضۍ اوازه ګرځیده او نن دا دی خبر راغی چې نوموړي له فاني دنیا کډه وکړه.

الله تعالی دې په مطمئن صاحب ورحمیـږي، اللـه تعـالی دې کړي خدمتونه ورته قبول کړي. نوموړی چې په شعر او نثر کې د څومره استعداد خاوند و د لوسـتونکو غونـدې شـاید دی خپله هم پرې خبر نه و. کاشکې هغه قلموال خپـل قلـم تـر دې زیات چلولای وای او په خپل منفرد سبک یې تر دې ډېر اشعار او لیکنې را پرې ایښي وای.

نغمې دې ګونګې، غږ دې ورک دی مطمئنه یاره

لکه چې تـه هم د حـــالاتو اضـــطراب وخـوړې

# په پوځي ډګر کې

# د ستر قائد پیغمبر ﷺ د بریاوو لاملونه

لیکوال: جنرال محمود شیت
ژ: م عبدالله اندړ

پیغمبر ﷺ ټولې نړۍ ته پېشوا او لارښود رالیږل شوی، د ګرد عالَم لپاره یو شان رحمت او خواخوږی دی، قانون پوهان هغه د نړۍ ترټولو غوره دستور او قانون جوړوونکی ګڼي، سیاسیون هغه یو ستر تجربه کار سیاستمدار په توګه راپېژني، حاکمان او قاضیان هغه ته د یوه غوره عادل واکمن او د منصف قاضي په نسبت افتخار کوي. پوځي چارواکي د هغه ﷺ په ځانګړې رهبرۍ او قیادت باندې ویاړي.

شاید د عربي ټاپوزمې د سختو شرائطو له امله چې عرب له یوه محیط او ټولنې بل محیط او ټولنې ته په انتقال سره پوځیانو او عسکرییتو دا حتمي انګېرلي وي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دغسې یو نابېره چاپیریال کې د ښه مقاومت، غوره رهبرۍ، حیرانوونکي کردار له امله عرب خصوصاً او مسلمانان عموماً هغه د رهبرۍ او جهاد په ډګر کې غوره یاد کړي.

که کوم څېړونکی د نبي ﷺ له بعثته تر وفاته پورې د هغه ژوند وڅېړي نو ارومرو به په مکه مکرمه کې د هغه ژوند د توحید له امله جهاد او د مدینې ژوند به یې د جهاد له امله توحید پیدا کړي.

پیغمبر ﷺ وروسته له هغې چې مدینې ته هجرت وکړ، یوائې په (۷) کلونو کې یې ۳۸ غزاګانې رهبري کړلې، په دویم هجري کال، صفرې میاشت کې غزوه (ودان) ته ووت، دا هغه ړومبۍ غزا وه چې هغه پخپله رهبري کړه، په اتم هجري کال رجب میاشت کې غزوه تبوک د هغه اخیرنۍ غزا ګڼل کیږي.

دپیغمبر ﷺ په قیادت کې دمسلمانانو له مشرکینو او یهودو سره ټولټال ۱۹ غزاګانو کې نښته رامنځته شوې، چې هغه بدر، أحد، خندق، قریظه، مصطلق ، خیبر، فتح مکه، حنین، طائف غزاوې وې، پداسې حال کې چې مشرکین پاتې ۱۹ غزاګانو کې له جګړې کولو پرته په تېښته بریالي شوي.

سره له هغې چې پیغمبر ﷺ په هیڅ یوه غزا کې چې مسلمانانو د هغه په رهبرۍ کې ترسره کړې، هیڅ ډول کوم اضطراب او ګډوډې ښکار نه شول او حتی د احد غزا کې هم له پوځي اړخه مسلمانان په ګډوډۍ کې ښکېل نه شول، ګواکې د پیغمبر ﷺ له امر څخه د غشو ویشتونکو ډلې دسرغړاوي په نتیجه کې مسلمانانو یو استراتجیک بری ترلاسه کړ او تکتیکي په شاتګ یې وکړ.

## د برې او نصرت اسباب

پوښتنه داده د پیغمبر ﷺ په هره نښته کې د بریالیتوب لاملونه څه و؟ ددې په ځواب کې یې موږ دلته پوځي او عسکري اسباب او لاملونه په درې کټګوریو کې خلاصه کوو:

**۱-** غوره قیادت (رهبري) . لکه د پیغمبر ﷺ رهبري چې وه.

**۲-** غوره پوځ او لښکر. لکه د لومړنیو مسلمانانو (صحابه و) پوځ.

**۳-** غوره قیادت سره سره معتدله جګړه . لکه د مسلمانانو چې له خپلو دښمنانو سره وه.

دغوره رهبر لپاره ګڼې ځانګړنې راوړل شوي ، کوم چې د (نظامات الخدمة السفرية) هغه کتاب کې چې له معتمدو پوځي سرچینو څخه بلل کېږي، په لنډه توګه راوړل شوي د غوره قائد لپاره هغه ځانګړنې دادي:

«۱- د چټکې سالمې پرېکړې ورکولو وړتیا. ۲- شخصي بهادري . ۳- پیاوړتیا او ثابت دریځ. ۴- له کوم تزلزل پرته د مسئولیت برداشت. ۵- د جګړئیزو اصولو پېژندنه . ٦- د برې او ماتې په صورت کې نه بدلیدونکي او نه تغیریدونکي احساسات . ۷- لرلید یا د نظر سبقت لرل. ۸- د ټولو ماتحتو مامورینو نفسیات او استعدادونه پېژندل. ۹-په رهبر د هغه د سړیو اعتماد ۱۰- پر سړیو د رهبر اعتماد. ۱۱- د رهبر او قواو ترمنځ متبادل محبت او احترام. ۱۲- ځواکمن بانفوذه شخصیت . ۱۳- بدني وړتیا ۱۴- سپیڅلی او پرتمین شالید».

د یو قائد لپاره د جګړې په ډګر کې پورته (۱۴) غوره ځانګړنې ګڼل کیږي چې موږ یې دلته په تفصیل سره ذکر کوو:

## ۱ – چټکه سالمه پرېکړه:

د قائد لپاره مهمه ده چې چټکې پرېکړې جاري کړي، ځکه عسکري دریځونه د سترګو په رپ کې تغیر خوري، که دریځ سم وي بیا د کامیابۍ لامل کیږي او که نه وي، ډیرې واړې لوی ناورین رامنځته کیږي خو د دغسې پریکړو او احکامو صادرولو وخت کې دوه لاملونو باندې باید اتکاء موجوده وي.

- ❖ د رهبر عقلي وړتیا
- ❖ د دښمن په اړه دقیق تفصیلي معلومات درلودل

داسې څوک نشته چې د پیغمبر ﷺ د نادرې عقلي وړتیا څخه انکار وکړي، کوم چې هغه ورباندې له نورو ځانګړی و. د هغه وړتیا چې مسلمانان او نامسلمانان پکې ټول پریوه خوله دي، چې نوموړی داسې څوک و چې خلک یې هم تشویقول او هم وېرول، له ډېر سترو عقلونو سره یې ټکر او مبارزه درلوده ، امت کې یې یووالی راوست، عقیده یې پکې پخه کړه، خو مګر پوښتنه داده چې داسې اریانوونکی بریالیتوبونه به له کوم لوړ او سالم عقلانیت پرته کېدل شوني وي؟

اصلاً د دښمن په اړه د معلوماتو ترلاسه کولو لپاره ګڼې لارې استعمالولای شو چې هغه د ګڼو استطلاعي (خبرپلټونکو) ډلو استول دي، که جګړه کې وي که د جاسوسانو له لارې وي، که د بندیانو په راغبرولو سره وي، یا د قائد لخوا خپله د اطلاعاتو ترلاسه کولو هڅه وي، او یا د متبصرو لرلیدو تجربه کارو شخصیتونو سره د مشورې له لارې ترلاسه شي.

د بدر غزا نه مخکې د پیغمبر ﷺ د سرایاو او غزاګانو لیږدېدلو هدف دا و چې د مدینې ګرد چاپېره سیمو او مکې ته تللیو سړو لارو په اړه معلومات ترلاسه کړي.

دغه راز د هغوی استوګنن خلک وپېژني، ترڅنګ ورسره د امنیت حلف او تړون وکړي.

د بدر په غزا کې هغه ﷺ ګڼې څارګرې ډلې واستولې چې د ابوسفیان د قافلې راګرځېدلو وخت معلوم کاندي، دا راز یې د بدر لور ته د لښکر له خوځېدو سره سم کوچنۍ حمایوي څارونکې ډلې په مقدمه کې ولیږلې او دوه ګروپونه یې بدر سیمې ته مخکې نه د څارګرۍ لپاره لیږلي وو، خپله شخصا یې هم څارنه شروع کړه، ترڅو د قریشو له قوت او هغه ځایونه چې دوی هلته رسېدلي و بشپړخبر ترلاسه کړي.



همدا راز پېغمبر ﷺ د بندیانو څخه چې د بدر له جګړې لږ دمخه نیول شوي و، په معلوماتو کې استفاده وکړه او هغه په خپل ځانګړي اسلوب (طریقې) سره د هغوی د راغبرولو سره د قریشو ځای معلوم کړ چې هلته یې اړولي و او د قُوې د سړیو شمېر یې هم معلوم کړ.

## ۲ – نادره زړورتیا او پیاوړی هوډ:

د هغه زړورتیا په هره جګړه کې په ټولو پوځي او ناپوځي چارو کې یو برابر څرګنده وه . د بدر جګړې ته ټېر وهل هم د هغه نادره زړورتیا ګڼل کیږي، په خندق غزا کې له احزابو څخه تر لسو زرو جنګیالیو مشرکینو په وړاندې ټینګ درېدل هم یوازینۍ بهادري ګڼل کیږي او د حنین په ورځ د خپلو ملګرو څخه د لسو تنو سره په میدان کې پاتې کېدل هم له توصیف لوړه خبره ده.

د بدر سترې جګړې میدان ته کوز شو چې هم په خپله جګړه وکړي او هم جګړه پرمخ بوځي، په همدې اړه علي ﷺ وايي: کله چې زموږ جګړه سخته او خونړۍ شوه نو موږ به په رسول الله ﷺ ځانونه ساتل، له موږ څخه یو هم دښمن ته له هغه پرته ډېر نژدې نه و.

له بعثته تر وفاته پورې یې د ټولو مشرکینو دښمني په غاړه اخیستل، د هغوی مخالفت ته په یواځې ځان ټېر وهل د پیاوړې ارادې او مضبوط دریځ څخه چې هیڅ تزلزل پکې نه و، بل څه نه دي..

د قریشو خلک د هغه تره ابوطالب ته له وعدو او تهدیدونو سره راغلل، د پېغمبر ﷺ خپل تره ورته وویل: اې وراره، ستا قوم ماته راغلی و، دا دا یې ویل، خپل ځان ونیسه، په ما دومره څه مه باروه چې زه یې توان نه لرم! خو هغه ﷺ ورغبرګه کړه: اې تره! سوګند په الله ، که دوی زما ښي لاس کې لمر او چپ کې سپوږمۍ کیږدي، چې دا کار پرېږدم ، ترهغو به یې پرېنږدم چې الله تعالی حق ته بری نه وي ورکړی اویا خو هم د حق په لاره کې ووژل شم.

خلاصه دا چې د پېغمبر ﷺ ټول ژوند د پیاوړو او کلکو ارادو له حیرانوونکو مثالونو سره واضح دی.

## ۳ – نه بدلېدونکې انګېزه :

د نبي علیه السلام انګېزه او نفسیات د بري او ګډوډۍ دواړو حالتونو کې هیڅ تغیر نه درلود، هغه په خپلو اعصابو بشپړ واکمن و، داسې واکمن چې له خیالاتو هم حقیقت ته ډېر نږدې و، په ډېرو سختو کړکیچنو حالاتو کې یې په ډېرو پیچلو دریځونو هیڅ پروا نه لرله.

هغه وخت چې مشرکین په احد کې له هر لوري نابېره په صحابه و چاپېره تاو شول، پداسې حالت کې د اعصابو کنترول، څه اسانه نه و، نه هلته اسانه وه چې په خندق غزا کې له راغلو لامحدودو ډلو ټپلو سره په جګړه کې واقع شول.

خصوصاً هغه وخت چې یهودو غدر وکړ، په اعصابو کابو لرل څه اسان کار نه و، د حُنین د جګړې په ورځ چې کله مسلمانانو ماتې وخوړه او هغه ﷺ ټولټال لسو صحابه و سره د مشرکین لوی لښکر مخې ته پاتې شو، هغه وخت هم په اعصابو کابو لرل اسانه نه و.

## ۴- دنظر سبقت (لرليد):

پېغمبر ﷺ په ټولو پوځي او ناپوځي چارو کې لرليد او فراست درلود چې بېلګې يې بې حسابه دي، هغه د حديبيې په صلحه کې ټول شرائط ومنل، ځکه هغه ورته فکر له مخکې نه سنجولی و، هغه خپل عميق نظر سره هر څه پېژندل او معلومول، دغو شرائطو قبلولو کې د مسلمانانو لپاره څومره کاميابي ده، دا صلحه به دوی ته داسې استقرار ورکړي چې د اسلام خپرولو لپاره به غوره فرصت وګرځي، عملاً دا هغه څه و چې ثابت شول، کله چې د مسلمانانو لښکر په حديبيه غزا کې ۱۴۰۰ سړي و مګر ايله دوه کاله وروسته د مکې د فتحې پرمهال ۱۰۰۰۰ لس زره پوځ برابرېده.

## ۵- مناسب کار لپاره مناسب سړی:

پېغمبر ﷺ له دې وجې چې د خپلو ملګرو په منځ کې لکه د يو عادي فرد په څېر رالوی شوی و، د خپلو ملګرو نفسيات او د هغوی وړتياوې يې ور معلومې وې، هغوی سره په غم او ښادۍ کې يوځای پاتې شوی و.

هغه پوهېده د ده په ملګرو کې غيرتي اتلان څوک دي، هغوی يې له خپلې وړتيا سره سم داسې ځای کې په کار لګول چې زړورتيا ته يې ضرورت لاره، لکه ابو دجانه رضي الله عنه.

هغه ﷺ پېژندل چې په ملګرو کې يې داسې هم شته چې زړه يې په جګړې نه ورځي، لکه حسان بن ثابت رضي الله عنه، هغه يې د سياسرو ښځو سره د هغوی د ساتنې لپاره مسئول وګرځاوه، څنګه چې په احد او خندق غزا کې يې هم له سياسرو سره پرېښی و، خو د هغه بليغ شعر څخه به يې استفاده کوله.

هغه ﷺ پوهېده چې د دوی ترمنځ د رايې او مشورې خلک شته، د قيادت او رهبرۍ خلک شته او داسې هم شته چې له ساده عسکري دندې پورته نور څه نه شي کولای، نو هريو يې پداسې دندو مؤظف وګرځول چې هغه يې ترسره کولای شول.

يو چا ته د هغه د وړتيا څخه زياته او کومه چې يې حق جوړېده، پورته برخه نه ورکوله نه يې له توان او وسې درونده پېټی پرې باراوه.

## ۶- متبادل (دوه اړخيزه) باور:

د هغه ﷺ لخوا پرملګرو باور دومره زيات و چې ملګرو يې هم پرهغه بشپړ باور درلود، دهغه خبره به يې بالکل نه غورځوله، که موږ په صلح حديبيه کې له مشرکينو سره د صلحې په اړه د صحابه و موقف راياد کړو، موږ لپاره همدا دليل کافي دی، که د دوی پوخ باور نه وای نو له صلحې څخه به يې انکار کړی و.

هغه ﷺ پر ملګرو د پاخه باور له وجې، پداسې حال کې خپل سړي د بدر ميدان ته وروغورځول چې د مشرکينو شمېر درې چنده زيات وو.

هيڅ يو رهبر هم خپل سړي پداسې جګړه کې نه شي ښکېلولای چې عاقبت او پای يې نه نامعلوم وي، بيا هلته چې دښمنان څو برابره زيات او ځواکمن وي، مګر هلته چې رهبر (قائد) په خپلو قواوو باندې ستر باور او اعتماد ولري، بيا کيدای شي.

## ۷- متبادل احترام او مينه:

په هره غزا، په سولييزو او جګړييزو موقفونو کې له صحابه و سره د پېغمبر ﷺ مينه، او د پېغمبر محبت له هغوی سره څرګند او ښکاره و.

يواځې د احد په جګړه کې د ملګرو يې حالت راخلو چې کله مشرکانو له هرې خوا په نبي ﷺ راتاو شول، نو مسلمانانو د دښمن غشو او نيزو ته ځانونه سپر کړل او له هغه يې په خپلو سينو سره د وارونو مخه نيوله.

نور بيا...



## مولوي عبد الحی مطمئن

# يو فکرو او فکر هېڅکله نه مري!



احمدالله احمدزی

د احد په مبارکه غزوه کې، چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د شهادت اوازه خپره شوه، نو د لږ وخت لپاره په صحابه کرامو رضوان الله علیهم داسې حالت راغی، چې يو شمېر کسانو په کې زړونه وبايلل او خاموشي خپره شوه، دغه مهال د قريشو مشر ابو سُفيان، چې هغه مهال لا مسلمان شوی نه و، پر مسلمانانو غږ وکړ، چې تاسې کې محمد «صلی الله علیه وسلم» شته؟ پيغمبر علیه السلام خپلو صحابه کرامو ته وويل، ځواب مه ورکوئ، بيا يې غږ وکړ، چې تاسې کې ابو بکر شته؟ پيغمبر علیه السلام بيا صحابه کرامو ته وويل، چې ځواب مه ورکوئ، بيا ابو سُفيان غږ وکړ، چې تاسې کې عمر شته؟ نو پيغمبر علیه السلام بيا صحابه کرامو ته د غلي پاتې کېدو امر وکړ. ابو سُفيان د پيغمبر علیه السلام او د دوه و يارانو پوښتنه ځکه وکړه، چې دوی فکر کاوه، اسلام پر دوی ژوندی دی، خو کله، چې ځواب ور نکړل شو، نو ابو سُفيان وويل، چې «أُعلُ هُبل أُعلُ هُبل » يعنې هُبل بوت زنده باد، نو پيغمبر صلی الله صحابه کرامو ته امر وکړ، اوس ځواب ورکړئ، چې «الله أعلی و أجل» بيا ابو سُفيان وويل، چې «ان لنا العُزی ولا عُزی لکم» يعنې «زموږ لپاره عُزی بوت شته او تاسې يې نه لرئ» صحابه کرامو ځواب ورکړ، چې «الله مولانا ولا مولی لکم.» موږ مولی لرو او تاسې يې نه لرئ. د دې ټولو پروسې په اړه د سيرت علماء کرام فرمايي، چې کله د پيغمبر علیه السلام او دوه و سترو صحابه کرامو نومونه واخيستل شو، نو ځواب ورنه کړل شو، خو کله چې د نظريې او عقيدې خبره شوه او مشرکينو د خپلو بوتانو زنده باد ناره ووهله، نو پيغمبر علیه السلام يې صحابه کرامو ته د ځواب ورکولو امر وکړ.

د پورته خبرو معنا همدا کېدای شي، چې شخصيتونه که هر څومره لوړ او د ستر اهميت څښتانان وي، نو يوه ورځ له دنيا فنا کيږي، خو نظريه او فکر هېڅکله نه زايل کيږي.

مرحوم مولانا عبدالحی مطمئن رحمه الله، چې له نوم سره يې له ماشومتوبه بلد وم، د هغه مرکې او شعرونه مو اورېدل او د اسلامي امارت له سقوط څو کاله وروسته موږ ورسره ملګرتيا او تګ راتګ و، نو يو پوهه، بادرکه، زيرک، مخلص، اسلام، وطن او اسلامي امارت ته يو متعهد شخصيت و، چې تول ملګري او حتی دښمنان يې هم په دې خبره شاهدي ورکوي.

مرحوم مطمئن صاحب د غزني قره باغ ولسوالۍ په يوه دينداره او عالمه کورنۍ کې زېږېدلی و، چې والد صاحب مولوي محمد انور رحمه الله د کمیونيستي يرغل په لومړيو کلونو کې د وحشي کمیونيستانو له لوري په شهادت ورسېد، خو ده او نورو ورونو يې د دين او هجرت لاره خپله کړه او د هجرت پر مهال يې په ګڼو ديني مدرسو کې زده‌کړې کولې، خو کله، چې د کمیونيستي نظام له سقوط وروسته د شر و فساد پر خلاف د مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر رحمه الله په مشرۍ د طالبانو اسلامي تحريک راپورته شو، مرحوم مولانا مطمئن

صاحب هم د خپلې ديني او ايماني وجيبې له مخې په لومړيو وختونو کې له تحريک سره ملګرى شو، بيا په لنډ وخت کې مرحوم لوى ملا صيب ته دومره نږدې او باوري سړى شو، چې له مولوي عبد الوکيل متوکل صاحب وروسته د اسلامي امارت او ملا صاحب وياند وټاکل شو.

د کورنۍ ترببې او مرحوم ملا صاحب صحبت د ښاغلي مطمئن صيب پر ژوند او فکر نور هم مثبت اغېز کړى و او د اسلامي امارت ژبه او فکر بلل کېده، تل يې هڅه کوله، چې د اسلامي امارت دريځ او فکر افغانانو او نړيوالو ته ورسوي او تل يې په سختو حالاتو کې ځان خطرونو او مشکلاتو ته وړاندې کړى دى.

د اسلامي امارت له سقوط وروسته، چې د طالب نوم چا په خوله نه شو اخيستى او نه چا طالب او ملا ته په خپلو کورونو کې ځاى ورکاو، مرحوم مطمئن صيب يوازينى شخصيت و، چې د سيټلايټ له لارې يې له ګڼو نړيوالو رسنيو سره خبرې وکړې او د مقاومت د بيا راپورته کېدو غږ يې وکړ. موږ ته به يې کيسې کولې، چې له رسنيو سره د خبرو او رپوټونو ورکولو لپاره به يې د شپې په پټيو کې او دښتو کې وختونه تېرول او د طالبانو د مقاومت په اړه به يې له رسنيو سره خبرې کولې، چې بالاخره د وياندويانو رسمي نظام جوړ شو او دى بېرته خاموش شو. له اړتيا پرته يې په رسنيو کې غږ نه دى راغلى او په فرهنګي کميسيون کې يې خپل مسؤوليت ادا کاوه. په ځرک او شهامت مجلو او همدانګه الإمارة او نورو ويب پاڼو ته يې د خپلواک او ځينو نورو مستعارو نومونو باندې ليکنې او شعرونه لېږل او په همدغسې سخت حالت کې يې پر شيخ حسن جان رحمه الله لويه دوره هم وکړه، د فراغت پګړۍ يې پر سر کړه او دا خبره به يې هم په ډېره نهيلۍ کوله، چې د دستاربندۍ په ورځ د هر چا خپلوان راتلل، خو زه يوازې له مدرسې راووتم او هېڅوک مې نه و، چې زما پر دستار بندۍ خوښي وکړي.

**د شهيد اميرالمؤمنين منصور صاحب د په وخت کې د مطئن صاحب د يووالي لپاره هڅې!**

زه هم د دې خبرې شاهد يم، چې کله د مرحوم لوى ملا صيب د وفات اعلان وشو او شهيد امير المؤمنين ملا اختر محمد منصور صاحب رحمه الله امير وټاکل شو، نو يو شمېر خلکو د منصور صاحب پر خلاف په رسنيو کې غږ پورته کړ، نو مطمئن صاحب يو ځل بيا راميدان ته شو، د رسنيو له استازو سره يې ناستې او مرکې وکړې او د هغه د ځو مرکو له امله د رسنيو او نړيوالو نظرونه بدل شول، چې اوس يې هم مرکې د بي بي سي، امريکا غږ، ازادۍ راډيو او نورو رسنيو په ارشيفونو کې شته.

د دغو مرکو په برکت د اسلامي امارت پر خلاف د روانو دسيسو مخه ډب شوه او هغه مهال زما په ياد دي، چې ځينو مغرضو کړيو مرحوم مطمئن صيب ته سخت، حتا د مرګ ګواښونه وکړل، چې له داسې مرکو لاس واخلي، خو نوموړي دغو ګواښونو ته هېڅ توجه ونکړه او د اسلامي امارت د صف يووالي لپاره يې په لنډ وخت کې دومره کار وکړ، چې زما په فکر ډېرو بنسټونو او مرکزونو به هم نه واى کړى.

خو کله، چې حالات عادي شول، مطمئن صيب بېرته خپل نورمال ژوند پيل کړ او د رسنيو له سترګو پناه شو.

## له یرغلګرو او د هغوی له غلامانو سره د مقاطعې درېځ!

زموږ چې له مرحوم مطمئن صیب سره څومره ناسته پاسته وه، نو ویلی شم، چې پر ولاء او براء یې ټینګه عقیده وه، له امریکايي یرغلګرو او د هغوی له ملګرو سره یې کلکه دښمني وه او حتا له هغه چا یې هم کرکه کوله، چې د یرغلګرو له غلامانو سره به یې راشه درشه درلوده.

څو کاله وړاندې په ۲۰۱۲ کال کې، چې طالبانو د «الفاروق» په نوم عملیات پیل کړي وو، په وطن کې یو حکومتي ملا ووژل شو، نو په یوه مجلس کې پرې یو چا خوا بده کړه او ویې وویل، چې دا کار طالبانو نه وی کړی ښه به و، نو مطمئن صیب له ځنډ پرته ورته وویل چې دا الفاروق عملیات دي، د حق او باطل ترمنځ به لارې جدا وي.

### زیرکتیا او لرلید

ډېر وخت، چې نور خلک څنګه فکر کوي، موږ هم هماغه رقم فکر کوو، خو مرحوم مطمئن صیب داسې نه و، په سیاست او ادب دواړو کې یې خپل نظر او لید لوری و. څو کاله مخکې، چې سوریې، لیبیا او نورو عربي هېوادونو کې د ځايي دیکتاتورانو پر خلاف پاڅونونه پیل شول، زما په شمول ډېر خلک د دیکتاتورانو د ظلمونو له امله دغو پاڅونونو ته خوښ ول، خو مرحوم مطمئن صیب راته وویل چې دې شیانو ته خوښي مه کوئ، انجام به یې ډېر بد وي او زیاته یې کړه، چې کومو خلکو دلته افغانان مشرکین بلل، هلته د لیبیا د پاچا معمر القذافي پر خلاف له ناټو سره ولاړ دي او همدارنګه د سوریې جګړو ته هم خوشبینه نه وو، چې څو کاله وروسته موږ هم پوه شو، چې له اوسني ویجاړ او ګډوډ حالت څخه د دیکتاتورانو روغ نظامونه غوره وو.

همدارنګه د ادب په اړه یې متفاوت نظر درلود. د ساري په توګه یوه ورځ د غني خان په شعرونو کې خبره شوه، نو ده وویل، چې ډېر شعرونه یې بې خونده او قواعدو خلاف دي، خو که دی د غفار خان زوی نه وای، تاسي به د خلکو نقدونه لیدلي وو او اوس یې، چې هر څوک په پټو سترګو صفتونه کوي، تر ټولو ستر لامل یې دا دی، چې نوموړی د خان عبدالغفار خان زوی دی.

### د کتاب لیکل او اختلاف خبره

په یوه نظام کې د نظر اختلاف طبعي او عقلي خبره ده او د هېڅا خبره هم وروستۍ نه شي کېدای او هر انسان د خطا احتمال لري.



مرحوم مطمئن صیب، چې کوم کتاب «ملا محمد عمر او طالبان» لیکلی و، د ده په نظر حقایق یې په کې بیان کړي وو، چې وروسته یې له ځینو خبرو رجوع کړې وه او ژمنه یې کړې وه، چې په دوهم چاپ کې به تعدیل کړي او پر ځینو خبرو کلک ولاړ و.

د امارت په منځ کې ډېرو مشرانو دې کتاب ته زغم وکړ او د ده شخصیت پېژندلو له امله یې هېڅ عکس العمل ونه ښود، خو کله، چې د اسلامي امارت دواړه مرستیالان حضرات خبر شول، دواړو په جلا جلا ډول له مرحوم مطمئن صیب سره لیدنې وکړې، او ډېر یې ونازوه او د هغه د پخوانیو خدمتونو یادونه یې ورته وکړه او دی هم د دواړو مرستیالانو په شمول له ډېرو مشرانو خوښ و

## بې وزلي او ناروغي

د ټولنيزو رسنيو ډېرى فعالان او د مرحوم مطمئن صيب مخلصين دا انديښنه لري، چې نوموړى په سخت حالت کې ناروغ و او د بې وسۍ ژوند يې تېراوه.

دا بايد په ښکاره ټکو وويل شي، چې د ګوتو شمېر څخه پرته د طالبانو ډېرى مشران په کمـــزوري اقتصادي وضـــعيت کې ژوند کوي، چې يو پـــه کې مرحـــوم مولـوي عبدالحى مطمئن صيب و.

دوه محترم علماء کرام د مطمئن صيب پوښتنې ته ورغلل، زامنو يې ورته وويل، چې هغه ناروغه دى او د راوتلو نه دى، خو د مېلمنو په ټينګار ورتـه راووت، چې ګوري سرى له اندازې زيات خراب دى، مېلمنو يې له زامنو د علت پوښتنه وکړه، نو هغوى ورته د پېسو نه شتون لامل ياد کړ. د مطمئن صيب عزت نفس دومره عالي وو، چې هېچا ته يې د لاس غزځولو هڅه نه وه کړې او سمدستي دواړو مېلمنو نوموړى روغتون ته روان کړ، په لاره کې يې له ما سره اړيکه ونيوله په ګډه مو د سيمې مجهز روغتون ته ورساوه، خو کله چې د اسلامي امارت مشران خبر شول، له لومړۍ ورځې يې د درملنې لپاره مصارف راولېږل، د امارت د دواړو مرستيالانو سرېېره ډېرو مشرانو به يې د خپلو استازو په واسطه پرله پسې پوښتنه کوله، خو د ناروغۍ وخت يې ډېر تېر شوى و، کرونا يې په نمونيا «سينه بغل» اوښتې وه، سږي يې خراب شوي وو، د مجهز روغتون په «اى سي او» کې تر ۲۵ ورځو قوي درملنې او ځار وروسته يې خپل روح خپل حقيقي څښتن ته وسپاره او په ميراث کې يې اسلام، وطن او اسلامي امارت ته استقامت پرېښود او ويې ښوده، چې انسان بايد سختۍ، اسانتيا، رڼا، تياره او هر ډول حالاتو کې خپل نظر او فکر ته ژمن پاتې شي او د دنيا توپانونه بايد د ده نظر او فکر اغېزمن نه کړي او همدا هيله يې تل په خپلو شعرونو او ويناو کې هم کړې ده، دا د مرحوم مطمئن صاحب فکر و او فکر هېڅکله نه مري.



### اخلاص

فضیل بن عیاض -رحمه الله- فرمودند: هرگاه عمل خالصانه برای خدا باشد ولی درست انجام نشود، پذیرفته نمی شود. و هرگاه درست انجام شود ولی خالص برای خدا نباشد، باز پذیرفته نمی شود، تا آنکه هم خالص باشد و هم درست انجام شود.

و فرمود: خالص یعنی آنکه عمل تنها برای خدا باشد و درست یعنی آنکه عمل بر طبق سنت نبوی انجام شود.

(جامع العلوم والحکم ص ۱۷)

# د طالبانو د فرهنګي کمیسیون

## ویډیویي څانګې ته لنډه کتنه

■ حافظ هجرت

دا چې دنیا ورځ تر بلې د ترقۍ پر لور روانه ده او هره ورځ د ساینس او ټکنالوجۍ په برخه کې یو نه یو ډول نوښت رامنځته کیږي، انسانان نږدې هره ورځ د سلګونو نالیدلو مخلوقاتو د را سپړلو شاهد وي.

په ۲۰۲۰ کال کې د ساینس پوهانو یوې احصایې کې ویل شوي: یوازې زمونږ په سیاره (ځمکه) کې ۱۵ملیونه ژوي کشف شوي، چې په هغې کې خواوشا ۲ ملیونه یې پیژندل شوي او د نورو د پیژندلو لړۍ لا روانه ده.

په دې ټولو پرمختګونو، څیړنو او د قدرت د نښو نښانو د لیدلو او پیژندلو کې یو مهم او اساسي رول د تصویر او ویډیو جوړونکې "کامرې" دی، چې د لومړي ځل لپاره نړۍ ته په ۱۶۱۵م میلادي کال کې د (جان زهن) په نامه یوه ساینسدان لخوا جوړه او رامنځته شوه؛ خو د انځور اخیستلو او چاپ کولو وړتیا یې نلرله، وروسته بیا په ۱۸۲۶م میلادي کال کې د فرانسې د یوه ساینسدان (جوزف نیپس) لخوا جوړه او رامنځته شوه او د نړۍ لومړنی انځور یې پرې واخیست.

د یادونې وړ ده چې د کامرې جوړولو لومړنۍ طرحه او مفکوره له دغې تاریخ نه هم څو سوه کاله وړاندې یعنې په ۱۰۲۱م میلادي کال کې د عراقي مسلمان ساینسدان (ابن الهیثم رحمه الله) لخوا نړۍ ته رامنځته شوې وه، هغه په خپل کتاب "نظریات" کې ددې وسیلې یادونه کړې وه.

د جوزف نیپس له اختراع وروسته ګڼ شمېر هېوادونو کې بېلا بېلو شرکتونو نړۍ ته په ښه کیفیت د کامرې وړاندې کولو هڅې کولې چې بالآخره په ۱۹۸۰ میلادي کال کې دSony کمپنۍ لخوا د بیټامیکس په نامه یوه کامره وړاندې شوه چې د نورو په نسبت یې ریکارډ معیاري او د کارولو په برخه کې یې یو شمېر اسانتیاوې هم درلودلې .

د وخت په تېرېدو سره نورو شرکتونو لکه Panasonic, Samsung, Fujifilm, Canon, Nikon ..... هم ښې معیاري کامرې جوړې کړې او د معیار د ښه کېدو دا لړۍ یې همداسې جاري وه چې په نتیجه کې یې نړۍ ته ایچ ډي او ورپسې فل ایچ ډي او بیا K٤ او همدا رنګه K٨ او اوس تر هغې هم د لوړ کیفیت کامرې رامنځته شوې.

بهر حال د نړۍ انسانان له دغو کامرو څخه په مختلفو برخو کې استفاده کوي، څوک یې د ودونو، سیاحت او تفریح پرمهال د یادګاري انځورونو لپاره کاروي، څوک ترې د ساینس او ټیکنالوجۍ برخه کې کار اخلي، څوک یې تجارتي او تعلیمي برخو کې کاروي او ځیني ترې د فلمونو دنیا کې استفاده کوي چې ترټولو زیاته مادیاتي ګټې یې همدوي ته رسیږي.

خو! یو بل مهم اړخ یې تبلیغاتي برخه ده، په دې برخه کې کامره د دنیا تر ټولو قوي او د خطرناکې اسلحې په حیث رول لوبوي چې د نړۍ زیاتره قوتونه یې د یو بل پر خلاف د ځان د لوړ ښودلو لکه( د خپلو پوځي تکتیکونو، کارنامو، وسایلو او د ماډرنو اسلحو نمایش) کې ترې استفاده کوي، کوم چې د مقابل جانب په

پوځ او سرتېرو د رعب او هیبت غورځولو او د هغوی د مورال کمزوري کولو لپاره بهترین او مجرب تکتیک دی، چې ژوندۍ بېلګه یې د امریکا او د طالبانو ترمنځ موجوده نولس کلنه جګړه کې لیدلی شو.

په دې جګړه کې امریکا د طالبانو پر خلاف د ویډیویي کامرې په توسط د سلګونه فلمونو، ګیمونو او د تلویزوني چینلونو له لارې افغان ولس او نړیوالو ته په تېرو شلو کلونو کې داسې زهرجن تبلیغات وکړل؛ چې په تاریخ کې یې ساری نه لیدل کیږي. دوي د دغو تبلیغاتو په زور افغانانو او د باندې نورو نړیوالو ته خپل ځانونه سوله ساتي، امن ساتي، ترهګری ضد او د افغانستان جوړونکي؛ خو مقابل لوري طالبان یې جګړه مار ترهګر، د افغانستان ورانونکي او د سولې او امن دښمنان معرفي کړل.

که څه هم د امریکا دغه تبلیغاتي جګړه د نظامي جګړې په پرتله څو چنده زیاته مضره او زهرجنه وه، خو مقابل کې یې طالبانو هم په ډېرو کمو امکاناتو سره د خپل فرهنګي کمېسیون د بصري (ویډیویي) څانګې په مټ د دوي خلاف په نسبي ډول پرحقایقو ولاړه ویډیویي تبلیغاتي جګړه پیل کړه.

په افغانستان کې یې د دوي ترسره شوي جنایات او زړه بوږنوونکي وحشتونه، د افغانانو د دین، مذهب او کلتور پر وړاندې د دوي شوم پلانونه، دسیسې او ناوړه اهداف یې په ویډیویي بڼه بربنډ او روښانه کړل، چې نتیجه کې یې ډېر ژر افغان ولس او نړیوالو ته ددوي هغه پټه خونخواره، مکاره او شیطاني څېره رسوا او له امله یې ددوی دغه تبلیغاتي یرغل د نظامي یرغل په څېر تر ډېره حده کمزوری، بې اثره، ناکام او نامراده وګرځېد.

د طالبانو د ویډیویي تبلیغاتي څانګې دغه تاریخي کارنامه له هیچا پټه نه ده، په دې هکله پخپله امریکا او د هغوی د اتحادي هیوادونو سیاسي او تبلیغاتي مبصرین پخپل تبلیغاتي شکست او د طالبانو په بریا غږېدلي دي چې د هغوی مقالې او د بحثونو کلیپونه اوس هم په انټرنېټ کې موجود دي.

خبره نوره د دې مهمې تبلیغاتي، ویډیویي څانګې په برخو او د کاري طرزالعملونو په تعارف سره رالنډوم.

د طالبانو دغه څانګه په درې ستوډیوګانو مشتمله ده، چې یوه یې الاماره، بله یې الهجره او بله یې منبع الجهاد نومیږي، د دې درې واړو ستوډیوګانو اهداف او موخې یو، خو کاري طرز العملونه یې جلا او په لاندې ډول دي:

د الهجرة او منبع الجهاد ستوډیو خدمات، نتایج او طرزالعمل :

په دې درې واړو کې الهجره او منبع الجهاد ستوډیوګانې تقریبا تر ډېره حده د طالبانو په نظامي برخو کې خپل خدمات ترسره کوي، دوي د طالبانو د نظامي کندکونو په معسکراتو کې د مجاهدینو د روزنې او بیا، د هغوی له لوري د افغانستان په مختلفو ولایاتو کې د امریکا او د هغوی پر متحدینو د ترسره شویو عملیاتو فلمونه عکاسي کوي او بیا یې خپل ولس او نړیوالو ته وړاندې کوي.

طالبانو ددې ستوډیوګانو د فلمونو په مټ درې مهمې اساسي ګټې لاسته راوړي دي:

لومړنۍ مهمه لاسته راوړنه یې د خپل طاقت، شجاعت او د خپلې بریا اظهار دی؛ کوم چې د امریکا په هغو تولو درواغجنو تبلیغاتو رد کوي، چې هغوی د طالبانو پر خلاف د نړۍ په فلمي سینماګانو او ټلویزوني چینلونو کې نړیوالو ته د خپل ځان پر وړاندې؛ طالبان ډېر کمزوري، بزدله، شکست خورده او ناکام ښودلي وو.

دغو ستوډیوګانو په دې برخه کې د امریکا د درواغجنو کیسو، فلمونو او ډرامو په مقابل کې نړۍ ته د جګړې له ډګر څخه ریښتیني صحنې او انځورونه وړاندې کړل؛ کوم چې امریکایانو ته ډېر درانه او د هغوي په رسوایۍ، ذلت او شرمندګۍ تمام شول.

دویمه مهمه لاسته راوړنه یې دا ده؛ چې دغو ستوډیوګانو د جګړې له تاودو ډګرونو څخه عکاسي شوي صحنې او په زړه پورې حقیقي فلمونه جوړ او نړۍ ته وړاندې کړل، چې په هغې کې (د امریکا او ناټو ټانګونه د ماینونو ښکار شوي، الوتکې رانسکورې

شوي، مخامخ جګړو او استشهادي بریدونو کې یې پوځیان او د هغوی بیسونه او قرارګاوې له خاورو سره خاورې شوي او.....) د هغې خپربدل او کتل ددې لامل شو، چې نن د امریکا او د هغوی د اتحادي ځواکونو مورالونه لویدلي، په افغانستان کې له جګړې بېزاره دي، آن تر دې چې زیاترو پوځیانو یې ددې فلمونو په کتلو له طالبانو سره د جګړې کولو له ویرې او هیبت نه زړونه چاودلي او ځینو یې بیا مخکې له مخکې خپل ځانونه وژلي دي.

دریمه مهمه لاسته راوړنه یې طالبانو ته دا ده، چې تقریبا د افغانستان د نوي نسل ۷۰ سلنه خواوشا ځوانان د همدوي د زړه راښکونکو فلمونو له کتلو سره د جهاد او استشهاد لوري ته جذب شوي دي چې، له امله یې د طالبانو لیکو کې د مجاهدینو سل چنده زیاتوالی راغلی دی.

دغه دواړه سټوډیوګانې خپلو مینوالو ته، په کال کې تر دریو خواوشا لوی اصدارات (فلمونه) وړاندې کوي.

اما د الاماره سټوډیو خدمات او کاري طرزالعمل یې جلا او په لاندې ډول دي:

الاماره سټوډیو نه یوازې دا چې د طالبانو د نظامي عملیاتو او بریدونو عکاسي کوي، بلکه د طالبانو د ټول نظام په هر بخش کې ویډیويي نمایندګي/ ویاندوي کوي. هغه که د تعلیم او تربیې برخه ده، که د صحت برخه ده، که د دعوت ارشاد جلب او جذب برخه ده، که په هېواد کې د آبادۍ او بیا رغونې بهیر دی، که له نړیوالو سره د سیاست برخه ده او که په مظلومو هېوادوالو د امریکا او د هغوي د اتحادیانو د ظلمونو او جنایاتو سلسله ده، خلاصه دا چې په ټولو برخو کې خپل خدمات ترسره کوي، دغه سټوډیو د ورځې له دریو نه تر څلورو خواوشا ویډیويي راپورونه او په کال کې تقریبا درې یا څلور درمیانه اصدارات (فلمونه) خپلو مینوالو ته وړاندې کوي.

طالبانو د همدې سټوډیو د مختلو (سیاسي،تعلیمي، صحي، د آبادۍ او رغونې....) تر عنوان لاندې د ویډیويي راپورونو په مټ نن د امریکا او د هغوی د اتحادیانو ټول هغه زهرجن درواغجن تبلیغات تر ډېره حده خنثا او درواغجن ثابت کړل؛ کوم چې یې د ددوی پر خلاف د ملیاردونو ډالرو په بیه د سلګونه ټلویزوني چینلونو له لارې تبلیغ کړي وو، او د خلکو اذهانو ته یې دا پروپاګندونه ورپیچکاري کړي وو چې (طالبان د تعلیم دښمنان، طالبان د امن دښمنان، طالبان د افغانستان د جوړېدو دښمنان دي). دې سټوډیو د تعلیم، امن، صحت، او د هېواد د آبادۍ او رغونې په بهیر کې د طالبانو د عملي خدماتو په عکاسي کولو سره خپل ولس او نړیوالو ته عملا دا ورونښوده؛ چې طالبان د تعلیم غوښتونکي او د تعلیمي مراکزو ساتونکي دي، طالبان د هېواد رغوونکي او د هېواد د پرمختګ مئینان دي، طالبان د جګړو او د بې عدالتیو د نا امنې فضاء ختموونکي او په هیواد کې د واقعي سولې، امنیت او د عدل د فضاء غوښتونکي او پلي کونکي دي.

اوس د افغانستان د مومنو هېوادوالو سربېره ټول نړیوال، بالخصوص د نړۍ مختلف مرستندویه مؤسسات لکه یونیسیف، صحت نړیواله اداره، سور صلیب او داسې نور په دې پوه او یقیني دي، چې طالبان د خپل هېواد او ولس لپاره د ریښتیني خپلواکه نظام، سولې، امنیت، صحت، معیاري تعلیم او د ژوند په ټولو چارو کې د ښېرازۍ غوښتونکي دي؛ ځکه خو یې څه موده وړاندې د افغان موجوده ګډوډ دولت پر ځای مستقیما له طالبانو سره په افغانستان کې د څلور زره ښوونځیو او کلینکونو جوړولو او همدا رنګه د ګڼ شمېر مالي کومکونو معاهده لاسلیک کړه.

له طالبانو سره د نړۍ د هیوادونو او عالمي مرستندویه ادارو د اړیکو او مرستو دغه نېکمرغه لړۍ لا هم پر مخ روانه ده او ورځ تر بلې پراخیږي.

نو لکه څرنګه چې د طالبانو په دغو ټولو ذکر شویو سیاسي، فکري او نظامي بریاو او همدا رنګه د امریکایي اشغالګرو په شکست او رسوایۍ کې د فرهنګي کمېسیون د بصري (ویډیويي) ځانګې سټوډیوګانو مهم او اساسي رول لوبولی، هیله ده چې په راتلونکي کې د نظام په راتګ او قیام کې هم خپلو خدماتو ته ادامه ورکړي؛ ترڅو افغانستان ته یو داسې مستحکم، پیاوړی او له هر نوع خیانت او غدر پاک نظام رامنځته شي؛ چې هغه دا خپل ځورېدلی، دردېدلی، کړېدلی او په کنډوالو بدل شوی افغانستان د نړۍ له پرمختللیو هېوادونو سره سیال کړي او پخپله سیمه کې یې د امن، ښکلا او سوکالۍ مثالي نمونه وګرځوي . پای

# د قلم او سنګر اتل





م. عطاءالله مبارز

**د شــــمال د لـــــوړو څوکــــو مســـلمانه**
**زه راځـــم لـــه کنـــدهاره نـــاز مـــې واخلـــه**

**مــــا راوړي انعامونـــــــه قــــــرآني دي**
**يـــو بـــه درکــړم لـــه دســـتاره نـــاز مـــې واخلـــه**

عبدالحی مطمئن، هغه ځپاند، هڅاند او رسا غږ، چې يوې مرکې يې د ولسونو ليدلوری بدلاوه، هغه قلموال چې نثر او شعر يې ځانګړی سبک درلود. له تجزيې څخه د هيواد ژغورنې، ملي ګټو او ارضي تماميت څخه د دفاع په تکل پيل شوي يون د سرلاري مرحوم اميرالمؤمنين ملامحمد عمر رحمه الله نژدې ملګری او وياند، اسلامي او ملي ارزښتونو ته ژمن ځوان او د ملت په درد دردمن شاعر نژدې پنځوس کاله وړاندې د غزني ولايت د قره باغ ولسوالۍ په يوه دين پاله کورنۍ کې سترګې وغړولې. کوچنی و، چې عالم پلار يې په ديني صبغه ورنګاوه. لومړنۍ زده کړې يې هم له خپل پلار څخه وکړې.

په ۱۴۱۵هـ ق کال کې د طالبانو د اسلامي تحريک له پيله مطمئن صاحب ددې صف ملګری و، تر منزله ددې يون په رسيدو کې يې سنګر او قلم دواړه وپالل، د ښه قلم او پر منطق ولاړ استدلال له امله د اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال د کندهار د اطلاعاتو کلتور رياست مسؤليت وروسپارل شو او هم مهاله يې د اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد د وياند دنده هم پر غاړه وه. نړيوالو راډيوګانو او اخبارونو سره د مرکو له لارې يې د اسلامي امارت ريښتينی انځور په ډېر مهارت تر خلکو ورساوه او په ډېره ښه توګه يې خپل رسالت ترسره کړ. دغه راز يې د شريعت غږ راډيو د امر په توګه هم خدمت کړی دی.

تر اشغال وروسته ګاونډي هيواد پاکستان ته مهاجر شو او خپلې پاتې زده کړې يې د پيښبور په صدر کې د مشهور ديني عالم شيخ الحديث شهيد حسن جان رحمه الله څخه بشپړې کړې. د اسلامي امارت له واکمنۍ وروسته يې د وياندويانو د ادارې د مسؤل په توګه کار وکړ. په غير رسمي ډول يې هم د اسلامي امارت څخه د دفاع او د دغه سپيڅي واحد صف ساتلو په لاره کې نه ستړې کېدونکې هڅې وکړې. د اسلامي امارت د تاريخ ساتلو لپاره يې د (ملاعمر، افغانستان او طالبان) تر نامه لاندې ښکلی کتاب وليکه.

د نثر سره سره د شعر په برخه کې هم الله تعالی ډېر استعداد ورکړی و، د اسلامي امارت واکمنۍ پرمهال يې په ډېر هنر او باريکي سره د طالبانو د مبارزې اهداف او موخې د شعر په ژبه تر خلکو رسولې،لکه چې وايي:

**د شــــمال د لـــــوړو څوکــــو مســـلمانه**
**زه راځـــم لـــه کنـــدهاره نـــاز مـــې واخلـــه**
**مــــا راوړي انعامونـــــــه قــــــراني دي**
**يـــو بـــه درکــړم لـــه دســـتاره نـــاز مـــې واخلـــه**

په دغو څو شعري تعبيرونو مطمئن صاحب هڅه کړې، د طالبانو د مبارزې اهداف او موخې هيوداوالو، پـه ځانګړې توګـه، د شـمال اوسېدونکو ته روښانه کړي؛ څکه هغه وخت هم ځينې مغرضو او پردیپالو هڅه کوله د طالبانو مبارزه بدنامه کړي. مطمئـن صـاحب په خورا ښه تعبـير سره ددې پروپاګند مخه ډب کـړې او دا يـې څرګنـده کـړې، چـې طالبـان د قـراني ښـوونو د عمـلي کېـدو او اسلامي نظام د نفـاذ لپـاره راپورتـه شـوي دي او دغـه راز يـې د کندهار نوم اخيستو سره د هغو خلکو تبليغـات مـات کـړي، چـې طالبان يې بهرنيان بلل.

له دې کمالونو ور اخوا مطمئن صاحب ته الله تعـالی ډېـر لـوړ سـياسي بصـيرت هـم ورکـړی و، پـه نړيوالـو اړيکـو (International Relations) کې يې ډېرمهارت درلود او عملاً يـې لـه تېـرو دوه و کلونـو راهيسـې پـه جامعـه قاسميه کـې د (تخصص في العلاقات الدولية) برخه کې د استاد په توګـه دنـده تـرسره کولـه، د نومـوړي هڅـه وه، چـې د راتلـونکي اسـلامي افغانستان لپاره داسې ورړ او مستعد ځوان کدرونه ورروزي، چې نړۍ سره پر ملي او ديني ارزښتونو ولاړې اړيکې وپاللی شي او د ډيپلوماسۍ ډګر مو لا غښتلی شي. ښاغلی مطمـئن صـاحب پـه دري، عربي او انګليسي ژبو هم روان غږېدلی شو. او اسـلامپال ځوانان يې هم د معاصرو او نړيوالو ژبو زده کړې ته هڅول.

اروانباد مطمئن صاحب له دې نړۍ وکوچېد، اوس يـې ژبـه او قلم د غـزل تـوري نـه توليـدوي؛ خـو مـوږ تـه يـې د مطمـئن، خپلـواک، نـرګس بـې زړه او حـاجي کـمال پـه نومونـو لسـګونه شعرونه، سياسي، تحليلي، او ټولينزې ليکنې پرېښـودې، کـه څـه هم اوس د سنګر او قلم دغه اتل زموږ په مينځ کـې نشـته، خـو د لارې بل مشالونه يې پـه مـيراث راتـه پـاتې شـول. کـاش! چـې مطمئن يو څه وخت نـور هـم ژونـدی وی او د ازادۍ او اسـلامي نظام د اقامې ستر ارمان يې په ژوند پوره شوی وای!

رحمه الله تعالی، روح يې ښاد او ياد يې تل

فارين پاليسی:

## بايدن از تخريب روند صلح افغانستان توسط غنی جلوگيری کند

باتوجه به بحران‌هایی که دولت جدید آمریکا در داخل و خارج از کشور با آن روبرو است، افغانستان در فهرست اولویت‌های کاخ سفید قرار ندارد اما نظر به وعده دولت بایدن برای پایان دادن به «جنگ‌های بی‌پایان» باید دید که واشنگتن چگونه نیروهـا را بـا حفـظ دسـتاوردها از افغانستان خارج می‌کند.

«فارین پالیسی» نوشت که اکثر افغان‌ها و مقامات آمریکایی اتفاق نظر دارند که تداوم توانایی طالبان به خشونت‌ها به دلیل رهبری بد غنی است.

این رسانه تاکید کرد که رئیس جمهور افغانستان مخالف رسیدن توافق صلحی در افغانستان است که ممکن است او را از قدرت کنار بزند.

نشریه آمریکایی افزود: توافقنامه قطر طالبان را متقاعد کرد که آمریکا برای خروج عجله دارد و این پیروزی محسوس بر اشغال آمریکا به آن‌ها اعتماد به نفس بخشیده تا در مذاکرات بین‌الافغانی بر مواضع خود قاطعانه ایستادگی کند.

فارین پالیسی تاکید کرد: «دولت بایدن برای اینکه طالبان را متوجه تعهدائش کند بنابراین باید در میز مذاکره و میدان جنگ به آن‌ها این پیام روشن را بدهد که نیروهای آمریکایی تا زمانی که طالبان توافقنامه را رعایت نکنند، افغانستان را ترک نخواهند کرد».

نوشتار با مخرب خواندن نقش غنی در روند صلح ادامه داد: «واشنگتن باید به غنی که بیم دارد، توافق بین‌الافغانی منجر به پایان دوره ریاست جمهوری وی شود، هشدار دهد که تخریب روند صلح قابل تحمل نخواهد بود».

فارین پالیسی همچنین تاکید می‌کند که آمریکا برای رسیدن به این مهم می‌تواند از کمک‌های مالی و نظامی به عنوان اهرم فشار بر دولت غنی استفاده کند.

(احمد ضیا بقا)

# نن مو له چمه

## یو ملنګ د ګور مېلمه شو!

حمزه حسیني

د دې دنیا له دردونو ډکه شېبه چې ټول زنده سري ورسره مخامخ کيږي، مرګ دی. دا چې انسانان دې فاني دنيا کې الله تعالی د خپل عبادت لپاره پيدا کړي، نو هغه کسان کامياب دي چې خپل ژوند يې د الله تعالی په عبادت کې تېر کړی وي او له دې فاني نړۍ څخه په داسې حالت کې رخصت اخلي، چې له څېرو يې د کاميابۍ وړانګې ځليږي.

هوکې! نن مو له چم څخه ملنګه څېره د تل لپاره وکوچېده، د نوموړي په رحلت ډېرې زړونه ودردېدل او ډېرو سترګو پرې اوښکې تويې کړې، دغه ښاغلی شخصيت ملا عبد الحی "مطمئن" رحمه الله و، نوموړي د افغانستان اسلامي امارت په پنځه کلنه دوره کې کابو څلور کاله د ویاند په توګه خدمت کړی او د طالبانو د تحريک پر مهال يې کندهار کې د اطلاعاتو او کلتور رياست کې د رئيس په توګه دنده اجراء کړې ده.

د غيرتونو دغه دنګ منار له کلونو کلونو د اسلامي امارت تر سپېڅلي بيرغ لاندې په مېړانه خدمتونه وکړل، له سختو حالاتو سره يې په ډېره جرئتمندانه توګه مقابله وکړه، د ژوند له سختو کړکېچونو يې د ژوندانه کښتۍ د بريا تر ساحله ورسوله، د رب العلمين دربار ته يې له هيواد لرې په پردېسۍ کې خپل روح وسپاره، روح يې ښاد او ياد يې تل تر تله.

ملا عبد الحی "مطمئن" رحمه الله که څه هم ما په ژوند نه و ليدلی البته! له نوم سره يې اشنا وم، نوموړی له ویاندويۍ او ليکوالۍ سربېره يو پياوړی او درونډ شاعر هم و، د مطمئن رحمه الله له شعر څخه څرګنديږي چې د لوړې حوصلې خاوند، په سختو حالاتو کې له صبر او استقامت څخه کار اخيستونکی، په خپل دريځ کلک پاتې کېدونکی او مقابل لوري ته احترام لرونکی شخصيت و.

متأسفانه چې نن د مطمئن رحمه الله ديدار ته په داسې مهال حاضر شوم، چې نوموړی د ابد په خوب ويده و، دا به زما بد بختي وه، چې په داسې مجلس کې مې ورسره ملاقات وکړ چې يوازې ما ته د خبرو کولو اجازه وه او د ده لخوا ځواب نه را کول کېده، نن يې جراره صدا خاموشه وه، نن يې خلک د وروستي ديدن په موخه را ټول شوي وو، نن مطمئن لاړ خو تر شا يې ډېرې زړونه دردمن پرېښودل.

مطمئن رحمه الله په خپل مرګ د ادب او فرهنګ ډګر يتيم کړ، د ليکوالۍ او رسا غږ ميدان يې وننګاوه او پر مونږ يې ډېرې غمونه مېلمانه کړل.

هوکې! مطمئن د ژوند کابو ټوله برخه له ترخو حالاتو سره په کشمکش کې تېره کړې ده، نوموړی کوچنی څلور کلن ماشوم و، چې کمونستانو د پلار له مهربانه سيوري محروم کړ، ماشومتوب يې د پلار له نازنينې غېږې لرې د يتيمۍ زندګۍ په سختو حالاتو کې تېر کړ او د زندګۍ دريم او اخري پړاو يې هم په خورا يوازېتوب پای ته ورساوه.

مطمئن رحمه الله چې زلمی و د ديني زده کړې لپاره يې د عزم اباسين په څپو شو، د همدې ارمان د سر ته رسولو په موخه د پاکستان په ديني مدارسو کې دېره شو، چې د فراغت سند يې د پاکستان له نامتو او جيد عالم شيخ الحديث حسن جان شهيد رحمه

الله څخه تر لاسه کړ، خو دا چې په هیواد د شر او فساد څپو هجوم راوړی و؛ نو مطمئن رحمه الله یې په وړاندې د مبارزې ډګر ته ووت، له یو څه وخت تېرولو وروسته د طالبانو د اسلامي تحریک [اسلامي امارت] ویاند او په کندهار کې د اطلاعاتو او کلتور ریاست رئیس وټاکل شو، کلونه یې په همدې سپېڅلې لاره کې خدمت وکړ.

دردمن مطمئن ته دې الله تعالی مغفرت وکړي، رب العلمین دې ټول تقصیرات ورته معاف کړي، کورنۍ، متعلقینو او دوستانو ته دې یې الله تعالی اجرونه او عوضونه ورکړي، الله تعالی دې هغه کسان د خپل رحمت تر سایو لاندې لري چې په ژوندون یې د مطمئن صاحب رحمه الله تعالی خدمت کړی دی آمین.

په آخر کې محمد مطمئن ته، ګرانه ورور جانه! ګوره چې د پلار ارمان دې خاورې نه کړې، پام د دنیا په هوس دوکه نشې، له وخت څخه ګټه واخله، عالي تحصیلات وکړه، د دین او هیواد د خدمت لپاره ځان را ونغاړه او په لوړ مورال ټولو ازمایښتونو ته مناسب ځواب ورکړه، رب تعالی دې مل او نګهبان شه.

# ولې د سورت توبه په سر کې بسم الله نشته ؟

م...ف...

په دې مسئله کې د مفسرینو څو اقوال دي : یو قول دا ده : چې د حضرت عثمان( رضی الله عنه) په دور خلافت کې چې کله د قرانکریم جمع کیدله، نو دوی په دې نه پوهیدل چې سورة براءة د سورة انفال جز ده که بېل سورت ده.

د حضرت عثمان(رضی الله عنه) نه روایت ده چې فرمايي: د سورة براءة بیانونه د سورت انفال بیانو ته ورته والی لرلو، نو ما داسې فکر وکړ چې سورت براءة د سورت انفال جز وي. رسول الله (صلی الله علیه وسلم) رحلت کړی وو او مونږ ته یې ددې بیان نه و کړی چې براءة د انفال جز ده او که نه ؟

نو ځکه مو د دې دوه و سورتونو په منځ کې بسم الله ونه لیکله، د یادولو وړ ده چې صحابه کرامو د امیرالمومنین اقداء وکړه او د هغه په شروع کې یې سورت ونه لیکلو. (تفسیر انوارالقرآن -ابن کثیر ، المنیر او تفسیر فتح القدیر)

ځینې علماء بیا د بسم الله نه لیکلو دلیل دا وايي : چې سورة توبه په حقیقت کې د سورة انفال تکمیل ده، یعنې جز د سورة انفال ده، نو ځکه په شروع د سوره التوبه کې بسم الله نده راغلې.

دوهم :

دا چې په دې سورت کې د منافقانو سره د جهاد ، جنګ او د منافقانو د ویرولو بیان شوی دی، حال دا چې "بسم الله الرحمن الرحیم" د رحمت الهی لپاره وي ، نو دلته د منافقانو سره جهاد ، او د هغوی ویرولو بیان ده چې د رحمت ځای نه دی، بلکه د کفارو او منافقینو سره د جنګ او د هغوی د وېرولو بیان ده، نو په دې وجه بسم الله الرحمن الرحیم نه ده ذکر شوې.

معارف القرآن لیکي : د فقهاؤ په نزد کله چې څوک په مسلسل ډول قرآن وايي یعنې د سورت انفال په تلاوت پسې سورت توبه شروع کوي نو بسم الله به نه وايي؛ مګر که یوازې سورت توبه وايي یا د سورت توبه کوم جز تلاوت کوي، نو بسم الله الرحمن الرحیم به وايي،مطلب دا چې دنورو سورتونو په قسم دسورت انفال اوسورت توبه په فصل یا منځ کې بسم الله ویل نشته (معارف القرآن )

# سولې او شرعي نظام ته

# د طالبانو ژمنتیا او لېوالتیا !!

سعد کتوازی

اسلامي سیاست په لنډ ډول پر دیني بنسټونو ولاړې، د وخت پر غوښتنو پوره او ښې حکومتولۍ نوم دی، دغه سیاست/حکومتولي او د اسلام دین نه سره بېلېږي، هو ! په غربي فکر ولاړ جمهوري سیاست چې دروغ، فریب، جعل او تزویر، بې دینۍ او...یې جوړوي؛ له دین او دیني بنسوټونو سره بشپړ په ټکر کې دی، عام ډول هم غرب/جمهوریت او اسلام دوه مضاد او یو له بل سره ټکر مفاهیم دي چې د هر یوه له یادولو سره دوهم د هغه د مضاد مفهوم په حیث زموږ ذهن ته راځي او د هغو پر بنسټ ولاړ سیاستونه هم د مفهوم او تطبیق دواړو له اړخه یو د بل ضد دي، نو هغه چې د سیاست پر نوم پېژندل شوی غربي سیاست دی او رښتیا هم د اسلام له دین څخه بېل دی.

د اسلام او جمهوریت او د هغو پر بنسټونو ولاړو دوو جلا سیاستونو ترمنځ د یاد ټکر او له دې امله چې په نږدې ماضي کې زموږ د ټولنې ځیني خلکو له غربي/جمهوري سیاست پرته د سیاست پرنوم څه نه پېژندل؛ دیني عالم/ملا او دیني طبقه یې له سیاسي بصیرت څخه بې برخي تلقي کوله او داسي یې انګېرل چې سیاست د دیني طبقې کا رنه دی، په دې مانا چې ترڅو دیني طبقې خپل رسالت پرېښودلی او دین ته یې شا کړې نه وي تر هغه وخته سیاست نشي کولای، غافل له دې چې دغه طبقه خو په خپل رسالت کې او د شرعي نظام را وستلو خپل اسلامي سیاست لري چې د بشپړتیا او غوره والي له مخې یې پر وړاندې جمهوري سیاست هیڅ دی، په ټوله کې اسلام، اسلامي سیاست او دیني طبقه لکه څرنګه چې د غرب، جمهوري سیاست او سیاستوالو ضد مفهوم تشکیلوي، همداسي د بشپړتیا له مخې غرب/ جمهوریت په هغه توپیر شاته هم پرېږدي څومره چې یې سیاست د اسلامي سیاست په پرتله نیمګړی دی.

په داسي حال کې چې پر نړیواله کچه مسلمانان، دیني طبقه او متمدن اسلامي سیاست یې په یوه او بله پلمه وروسته او له صحنې ایستل شوي او لا یې هڅې روانې دي، په ځانګړې چې سیکولرۍ ځیلي خلك سیاست له دین څخه بېل او دیني طبقه د هغه له وړتیا بې برخي ګڼي او په دې سره بشپړ سیاست له دین او د دیني طبقې له لاسه باسي؛ طالبانو د خپل سفارت وژمه سیاسي دفتر له ادرسه د ټولې نړۍ د جمهوري سیاستونو پر وړاندې د خپل اسلامي سیاست عملي خاکه وړاندې کړه او هرڅه یې د عمل پر ژبه ثابت او د نړۍ تر غوږونو ورسول.

طالبان چې په خپل جوړښت کې خورا فعال او له ګڼو وړتیاوو برخمن اشخاص لري، د دې په ضمن کې یې بشپړ غربي سیاست هم ننګولی او پر هېواد د هغه د تپل شوي غربي استعماري دولت چمچې چې اوس د جمهوریت او د هغه د لاسته راوړنو نارې وهي له هغو ټولو سره چې اسلام او سیاست یې سره بېلول او یایې دیني طبقه له سیاسته بې برخي انګېرله؛ د غربي سیاست د خس او خاشاك په توګه شاته پرېښودلې او اوس پر سیاست باندې پوهه خو څه چې د شرعي نظام د تعریف توان نلري او د پېژندنې لپاره یې روزنیزه کمېټه جوړوي ترڅو له طالبانو سره د بحث پر مهال یې اسره شي.

سولې او هر ډول تعهداتو ته ژمنتیا چې د اسلامي سیاست مهمه برخه جوړوي طالبانو په عمل کې ثابته کړې، طالبانو د قطر دفتر او روسیه کې د غونډو، د ځیني هیوادونو په رسمي بلنه هلته د ډیپلوماټیکو سفرونو او د ځیني هېوادونو او نړیوالو سازمانونو له استازو سره په دوحه کې د لیدنو کتنو له لارې د نړۍ ګوټ ګوټ ته د خپلې داعیې رسولو، د هغې په اړه یې پوښتنو او اندېښنو ځوابولو، تر ډېره یې په اړه هغوی ته قناعت ورکولو او پر نړیوال ستېج ځان د یو سیاسي ځواك په توګه مطرح کولو (چې د سیاست په میدان کې خورا مهم ګامونه دي) وروسته خپلې ټولې سیاسي او ډیپلوماټیکې هڅې پر سوله او کړیو تعهداتو ته پر ژمنتیا متمرکزې کړې دي.

په دې برخه کې له اشغالګرې امریکا سره ۱۸میاشتې پرلپسې۱۱ناستې ترسره کړې چې تېر کال کب میاشتې د ۱۰ مې د دوحې پر ویاړمن او تاریخي تړون منتج شوې، وریسې د هغه له مخې خو له اوږد ځنډ وروسته د (د طالبانو لخوا څو اضافي او د رژیم لخوا د حزب ګوند۱۲۰تنه بندیانو په ګډون) څه باندې۶۰۰۰دوه لوریزو بندیانو خوشي کېدو لړۍ بشپړېدل هم د سولې پر لور مهم ګام و او په تعقیب یې له امریکا سره د مذاکراتو پر دوام د دوحې د تړون پر اساس بین الأفغاني مذاکرات پیل شول چې د دوو میاشتو ځنډنۍ موده کې د مذاکرې د دوه لوریزې ایجنډا مېکانیزم او طرزالعمل چمتو کېدو وروسته دواړو اړخونو د ایجنډا ټکي یو له بل سره شریك کړل او پرې ژر او لنډ وخت کې بحث ته ټول افغانان سترګي پرلاره دي.

سولې او تعهداتو ته ژمنتیا چې د اسلامي سیاست ځانګړنه ده؛ طالبان ترې په لوړه بیه ساتنه کوي، له هغه راسي چې دوی د

سیاست میدان ته کوز شوي د سولې لپاره یې خورا زیاتې او بریالۍ هڅې او هاند کړي، هر خوا یې منډې وهلې، له بې ساري زغم او حوصلې څخه یې پکې کار اخیستی، پرلپسې لوړې ځاني او مالي قرباني ور کوي او د دوحې د تړون توافقاتو ته په بشپړه توګه ژمن پاتې شوي چې پرې د لس میاشتې اوږیدو سره بیا هم یې تړې د مخالف لوري په اعتراف هیڅ تخطی نه ده کړې.

خو په مقابل کې یې غربي سیاست بشپړ سرچپه او هڅې یې معکوسې دي، په دې مانا چې سولې او تعهداتو ته ژمنتیا پکې یواځې د شعار تر کچې ځای لري، د تېر څه باندې دوه کاله مودې مذاکراتي بهیر په اوږدو کې اشغالګرو او د هغوی د لاس آله د کابل رژیم چارواکو د خپل غربي او جګړه ایز سیاست له امله د سولې پر وړاندې د خنډونو ایجادولو خورا زیاتې هڅې وکړې، پر ولس یې بوږنونکې جنایتونه او وحشتونه ترسره کړل او لا دوام ور کوي، که له اشغالګرو سره د مذاکراتو پر مهال، که له هغه را وروسته د دوحې تړون د توافقاتو په عملي کولو کې او که اوس له بین الأفغاني مذاکرې سره هممهاله کوم سوله ضد هڅې شوې، خنډونه ایجاد شوي او خنډ واقع شوی ټول د غربي سیاست انځورګري کوي او د هغه له مخې شوي او روان دي.

په دې سربېره کړې ژمنې ماتوي او په ځلونو یې ماتې کړې هم دي چې د دوحې له تړون را وروسته له هغه د اشغالګرو تر۹۰۰زیاتو مواردو کې سرغړونې، له پورته یاد شوېو بندیانو وروسته زرګونه نور طالب بندیانو تر اوسه لا نه خوشې کول او له نړیوال تور لیست څخه د طالب مشرانو د نومونو لیرې کولو موضوع د یادونې وړ دي، په ټوله کې اشغالګر او پردیپال فکري ملګري یې د سیاست پر نوم د خپلو ګټو په لاره کې له هیڅ څخه مخ نه ګرځوي چې بیه یې هم ولسونه پرې کوي، افغان ولس چې د اشغالګرو او د هغوی د مزدورانو د سولې شعار کومې لوړې بیې پرېکړې له هیچاپټې نه دي او دا د غربي سیاست واقعي انځور دی.

طالبان چې د خپل ژور علمي او سیاسي بصیرت پر مټ یې د هر وخت نزاکتونه، شرائط او غوښتنې پر خپل وخت درك کړې، د امکاناتو په تناسب یې ورته رسېدګي کړې او ځواب یې ورته ویلی، د بیا بیا عمومي عفوې له اعلانولو (چې له مخې یې په میاشتیني ډول د۱۲۰۰شاوخوا دولتي منسوبین ور سره یو ځای کېږي) وروسته یې تازه نویو تحولاتو او شرائطو ته پر کتو د عفوې او تسلیمۍ اړوند جلب او جذب کمېسیون مشري هم د خپلې رهبرۍ کلیدي غړي او مخکښ طالب مشر ملا امیر خان متقي ته سپارلې چې شایي دولتي منسوبینو ته د وژل کېدو یاهم له هېواده د وتلو د ښه او بې زیانه بدیل په توګه د طالبانو غېږې ته د ورتلو پراخ چانس را منځته کړي.

په روانو وضعتونو او نزاکتونو کې چې افغان مظلوم ولس د څه باندې څلورو لسیزو بلا لړغونو هیلو او دردونو سره او لا هم د مرګ او ژوند ترمنځ په ډېره تلوسه د نوي افغانستان، شرعي نظام او خوښ راتلونکي د انتظار شېبې لنډوي، د جلب او جذب د مشرۍ په توګه د ملامتقي ټاکنه سولې او شرعي نظام ته د طالبانو ژمنتیا او لېوالتیا ښیي، نوموړی چې هم خپله د کریزماتیك، جذاب او کشش ورکونکې شخصیت څښتن دی او هم د نورو شخصیت پېژندنې او تر خپل منځ یې سره نږدې کولو ملکه لري؛ د پایلې په توګه یې د افغاني ټولنې په هر اړخیز سیاسي لیدلوري کې د غښتلي انسجام او همپالنې د ایجاد بنسټ رامنځته کولو او د روانو وضعیتونو د مدیریت او کنټرول په برخه کې د ډېر څه ټمه تري کېدای شي، په ټوله کې د ملا متقي جلب او جذب د ښې سیاستولۍ، سوله ییز او روښانه راتلونکي یو ډاډ ښونکی پیغام له ځان سره لري.

اوس چې طالبانو په سیاست کې د دیني طبقې عملي نقش ثابت کړی او د الله تعالی پر نصرت اشغالګر پر وتو دي، هغه سیکولرۍ او غرب فکرۍ ځیلې چې دین یې له سیاسته بېل یایې سیاست د دیني طبقې وړتیا نه ګاڼه؛ اوس دا پوښتنې او اندېښنې را ولاړوي چې ګنې دیني طبقه او طالبان د خپل سیاست او حکومتولۍ په جوړښت کې د اقتصاد برخه نلري یا یې نشي غښتلې کولای، غافل له دې چې اسلامي سیاست د حکومت او غوره حکومتولۍ پر یوه جامع تګلاره تعریف شوی او د بشري ژوند هیڅ اړخ او لوړه ژوره تري نه ده پاتې، بلکې ټول را نغاړي او له مخې یې طالبانو تر اوسه هم اقتصادي ودې ته تر وسې پوره پاملرنه کړې، له نړیوالو هېوادونو سره یې د هغه په اړه اړیکې جوړې کړې، د بشپړ شرعي نظام له راتلو مخکې مخکې یې لا ورته کار کړی او د هغه له را تلو وروسته به نور هم یادې اړیکې چټکې او ورسره هېواد د اقتصادي ودې پر لور ګام پورته کړي ان شاءالله.

غرب فکره او سیکولرانو سادګي وکړه چې شایي رښتیا هم د طالبانو د واکمنۍ تر سوله ییز افغانستان دلته د اشغال او جګړې په سیوري کې اقتصاد ښه شي؟؟ خو بیا چې د اشغالګرو د دغه خیالي اقتصادي ودې او موږ خوړلي لالچ کومې بېې موږ پرېکړې نکل یې اوږد او بیا هر چاته مالوم هم دی چې تر اوسه لا یواځې د همغو څو پردیپالو هوسونه نه دې ماړه چې خپلې ګټې په جګړه کې خوندي ګڼي، د همدې لپاره یې سوله ییز افغانستان او شرعي نظام ونړول، لا نور هم د همدې هوس په پار د جګړې د دوام او سولې د مخنیوي هڅې کوي، نو اوس ولس بیا ځل هماغسې لکه چې اقتصادي وده یې د جګړې په سیورې کې اټکل کړې وه؛ د غرب ځیلو په پاروئه ونه غولېږي او د بشري ژوند ټولو برخو ته د اسلامي سیاست رسېدنه او له هره اړخه یې پوره والی او بشپړتیا نا لېدلې ونه نیسي.....پای





# د پردیسي په هدیره کې..!

صفي الله رائد

په یوې ټولنه کې که یو څوک درک او احساس ولري او تل د بل مؤمن مسلمان ورور په درد دردمند واوسي؛ د داسې انسان په سینه کې همدا دردونه ډېر ژر او ژور ټپونه جوړوي.

هو! د مرحوم مطمئن رحمه الله په سینه کې هم همداسې بلا دردونو د مرغانو په څېر ځالې جوړې کړې وې؛ ځکه تل یې فکر او قلم په غم، اوښکو او دردونو څرخېدهٔ او د قلم پر مټ یې د خپل سوي زړهٔ آهونه ویستل..!

هو! مرحوم مولوی عبدالحی مطمئن همداسې یو څوک و؛ ځکه د خپل هېواد په روانو بدبختیو یې زړهٔ بدېدهٔ، لکه څنګه چې د اسلامي امارت پر یو والي او وحدت خوښېدهٔ؛ برعکس همداسې یې ددې خوځښت پر ټوټه کېدو یې زړهٔ ټوټه کېدهٔ؛ نه یې غوښتل دا واحد او متحد صف دې درې ورې شي؛ نه یې غوښتل چې د مرحوم امیر المؤمنین ارمانونه دې له خاورو سره خاورې شي.

له همدې کبله یې په دې سپین سپېڅلي صف کې د هیچا نیمګړتیاوې نشوای زغملای او په ډېر جرئت به یې مخامخ نقدولې.

هو! مطمئن صاحب پخپله روانه قلمي مبارزه کې وښودله چې فکر او د قلم زور مې آزاد وي، ځنځیرونه مې نشي تړلای.

په دې اخرو کې د مرحوم مطمئن د دردونو له انځورګرۍ داسې ښکارېده چې نور نو د دې بدرنګې نړۍ له هېڅ یو شي نه دی مطمئن. او تر ډېره همداسې وو...!

زه د عبدالحی مطمئن صاحب نوم، قلم او کمال سره له پخوا اشنا وم خو! بدختانه چې تقدیر مې ده سره لیدل هغه وخت لیکلي و چې کله یې ملګرو لحد ته ښکته کړ؛ دا زما لپاره ډېره عجیبه وه.

څو لحظې یې تابوت ته په کتو تېرو یادونو، فعالیتونو او خدمتونو تر کندهاره وېوړم؛ عجیب د ژوند لنډ تعریف یې په ژوند کې نغښتی و؛

له کندهاره بیا تر دې پردیسۍ (د هجرت تر دیاره...)

د مرحوم مطمئن د ژوند لنډه خلاصه دلته له خپل کلي چیرته لرې د پردیسۍ په یوې سپېره هدیره کې خاموشه پرته وه.

د پردیسۍ په خاوره کې پروت هغه بې کسه مطمئن؛ چې ټول عمر یې د قلم نوکه او ژبه د مسلمه امت په دردونو ونښوله او پخپلو وینښو ګوتو یې درد پسې درد انځور کړ؛ خو! بلاخره همدغو دردونو یې پخپله سینه منګولې ورخښې کړې؛ ژبه یې ګونګه او بیاکه قلم یې د تل لپاره له ګوتو ولوېد.

انا لله وانا الیه راجعون





# زما به تل ارمان یې

عاکف مهاجر

د طالبانو د تیر دوران د سقوط یواځې څو کلونه تیر شوي وو، خو دغه لښکر بیرته د راپاڅیدلو په تکل له سختو کړلیچونو د راوتلو په هڅه کې وو تر څو یوځل بیا خپل برم تازه او د یو بل امپراطور د ماتې ورځې رالنډې کړي.

زه د مدرسې طالب وم که څه هم کتابونه مو هغه مهال د تکمیلې وو خو له عمر کشر غالبا چې د څوارلس یا پنځلس کلونو به وم چې شهید مفتي گل احمد احرار، د یو تکړه مجاهد او سنگرپال ترځنگ یو اور ژبی خطیب او تکړه نطاق و، د نطاقی پرمهال یې د مطمئن صاحب دغه شعر وویلو.

یاد یې لره هېر به مې نه شي تور لېنگیه اشنا
زمونږ د تن غوښې خو تا په ستر قصاب وخوړې

مصری دې گونگې غږ دې ورک دی مطمئنه یاره
ښکاري چې ته هم د حالاتو اضطراب وخوړې

دا غزل هغه مهال ډیر دردوونکی ځکه و چې له وخت سره برابر وو.

د مطمئن صاحب مو نور شعرونه هم اوریدلي وو خاصکر هغه شعر یې:

نن مې نرۍ اوښکه په سترگو کې ویده ده اشنا
ستا د مرگي مې اوریدلې اوازه ده اشنا

خو هغه مهال یې د احرار صاحب له خولې دغه شعر ډیره مزه راکړه.

وخت وتلو څه وخت وروسته مو له احرار صاحب سره مجلس درلود، د ده د فقر په اړه یې څو عجیبې وکړې، نو ډیر حیران شوم چې د یو داسې صف ویاند چې د ټول اسلامي امت نمایندگي یې کوله، هغه اوس په دومره فقر او تنگدستی کې وخت تیروي چې دا یې هم د ریښتینولي ستره بیلگه وه.

د اسلامي امارت د ختیځې حوزې فرهنگي مسئول مولوي عتیق الله عزیزي صاحب راته ویل چې د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال مولوي عبدالحی مطمئن د امارت په لیکو کې له هغو شاعرانو څخه و چې بدیل یې نه درلود او وایي چې ځانگړتیا یې دا وه، مشر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله نه به چې د ویاندویانو په اړه پوښتنه وشوه نو د مطمئن صیب به یې ډیره ستاینه کوله او ویل به یې چې د ده جوابونه ډیر منطقي وي.

هوکې هغه رښتیا هم یو تکړه ویاند وو، د مشر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات پر مهال کله چې شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور تقبله الله امیرالمؤمنین وټاکل شو ځینو خلکو مخالفتونه شروع کړل، خو نوموړي بیا خپله ځانگړتیا ثابته کړه او د رسنیو په وړاندې داسې راڅرگند شو چې هر چا به پرې ویاړ کولو.

نوموړی له هغه وخت چې له دغه صف سره ملگری شوی و، بیا تر پایه ورسره و، ډیر سپیڅلی او د ټینگ دریځ خاوند و، چې دغه ټینگ دریځ او ځینو توندو لیکنو یې هغه د څه وخت لپاره څنگ ته هم پاته کړی وو.

مرحوم مولوي عبدالحی مطمئن، شهید امیرالمؤمنین ملا اخترمحمد منصور صاحب تقبله الله په خپل وخت کې ځینو هیوادونو ته د اسلامي امارت له لوري د یو استازي په صفت ولیږلو چې هلته یې هم خپله وړتیا ثابته کړه او له لاسته راوړنو ډک سفرونه یې درلودل.

نوموړی هغه څوک وو چې د اسلامي امارت له منځه یې لومړی دیته زړه ښه کړ او په ډیر جرأت سره یې دا کار وکړ، چې څنگه وکولی شي صف ته وفادار خلک او د ورځې یاران خلکو ته وښيي، دمطمئن هره لیکنه او هڅه دامارت دوحدت ، برابری او جهادي خواخوږی په نیت او تکل وه

روح یې ښاد او یاد یې تل تر تله

# ستا د مرګي مې اورېدلې اوازه ده اشنا

عبدالرحيم (ثاقب) ليکوال او سياسي شنونکی

زه او اروابناد مطمئن د يوې سيمې او تقريبا يوه کلي اوسيدونکي يو.

د نوموړي له ټولو ورونو او خپلوانو سره مي له وړاندې د کليوالۍ او بيا په يوې مدرسې کې د اوسيدو شناخت و خو خپله له ده سره مي په کال ۱۳۷۴ه ش کې هغه مهال پيژندګلوي شوه چې نوموړی د کندهار ولايت د اطلاعات او کلتور رياست د شعر او ادب څانګې غړی و.

ياد رياست په خپل تشکيل کې يوه فرهنګي شوری هم لرله چې مرحوم انجنير عبدالله ګل (ريان) صاحب يې مشر و.

شهيد محمد حسين (مستسعد)، شهيد عبدالبصير (عبرت) او اروابناد مطمئن د دې شورای له مخکښو غړيو څخه وو.

ښاغلی مطمئن دا مهال تازه د جګړې له لومړی کرښې د اطلاعات کلتور رياست ته راغلی و.

که څه هم چې پر بڼې او څيرې يې د يوه پوځي طالب نښې ښکاريدې خو پر کړنو او تعامل يې د يوه مينه ناک شاعر عاطفه غالبه وه.

اروابناد مطمئن هم د اسلامي امارت د واکمنۍ او هم د امريکايي اشغال په مهال د جهادي مقاومت په دوران کې په خپلو فعالو فرهنګي ، ادبي او سياسي فعاليتونو کې يو هڅاند او نوښتګر شخصيت و.

په کندهار کې د اطلاعاتو کلتور رياست د مشرۍ په مهال يې د طلوع افغان ورځپاڼې او خلافت مجلې ترڅنګ د کندهاري فرهنګيانو او شاعرانو د شعري او ادبي ارتقاء لپاره ګڼ شمير ادبي او کلتوري پروګرامونه پرمخ وړل.

له دې سره هم مهاله يې له رسنيو سره د يوه تکړه او بريالي وياند په توګه د اسلامي امارت مواقف شريکول او له هغو څخه يې په ماهرانه ډول دفاع کوله.

## د اشغال په خلاف مقاومت کې د مطمئن رول .

پر افغانستان تر امريکايي يرغل وروسته هم مرحوم مطمئن خپلې سياسي او فرهنګي هڅې جاري وساتلې او د مقاومت د لومړنۍ ترجماني (عزم) مجلې په تاسيس کې يې بنسټيز رول ولوباوه.

د عزم مجلې تر ټولو غوره تحليلي مقالې او په هغې کې نشريدونکي ادبي شعرونه به د اروابناد مطمئن او شهيد مستسعد په پياوړي قلم ليکل کيدل.

له امريکايي اشغال سره د مقاومت په مهال کې د جهادي فعاليتونو د انعکاس او له رسنيو سره د مستقيم تماس لپاره د اروابناد مطمئن تر ټولو مؤثر ابتکار د يوې منظمې تبليغاتي شبکې ايجادول و.

دې شبکې به په ټول هيواد کې د اشغالګرو خلاف د ورځنيو جهادي فعاليتونو ارقام تر لاسه کول او له رسنيو سره شريکول.

دا چې په دې حساس وخت کې د اشغالګرو ټول کوښښ د مقاومت د تبليغاتي فعاليت پرشنډولو او له منځه وړلو باندې متمرکزو ، مرحوم مطمئن د يادې شبکې د خونديتوب لپاره داسې ماهرانه وقايوي تکتيک وکاراوه چې دښمن يې له خپل ټول استخباراتي او پوځي توان او امکاناتو سره له منځه وړلو څخه عاجز و.

د دغې تبليغاتي شبکې د فعاليت ساحه د هيواد په داخل کې دوې کاري نقطې تعين او د هغوی لپاره دوه تنه وياندويان په مستعارو نومونو وټاکل شول چې د مقاومت له جبهو سره په مستقيم تماس او له هغوی څخه به يې په يوميه ډول د پوځي فعاليتونو راپورونه تر لاسه کول او بيا به يې هم له خپلو نشراتي وسائلو او هم له نړيوالو رسنيو سره شريکول.

## دغې تبليغاتي شبکې په يوه وخت کې دوې لاسته راوړنې لرلې:

لومړی - په مطبوعاتي لحاظ يې د دښمن هغه حصار مات کړ کوم چې يې د مقاومت د رسنيز کيدو د مخنيوي لپاره ايجاد کړی و.

دوهم- د ویاندویانو مستعارو نومونو د دښمن لخوا د هغوی د په نښه کولو او له منځه وړلو امکانات ناشوني کړل.

د مقاومت په مطبوعاتي فعالیت کې د یادې شبکې ایجاد داسې یو اغیزمن ګام و چې د دښمن ټوله تبلیغاتي میډیا یې ونګوله او هغوی له خپل ټول استخباراتي او پوځي ځواک سره آن ترننه پورې د همدې شبکې د فعالیت او د هغې د دوو تنو فعالو ویاندویانو د اصلي نوم او ځای ځرک ونشو لګولای.

## د امیرالمؤمنین ملامحمدعمر(مجاهد) رحمه الله تر وفات وروسته.

د امریکایي اشغال خلاف جهاد کې د مرحوم مطمئن بل تر ټولو موثر اقدام د اسلامي امارت د تأسیسي مشر ملامحمد عمر (مجاهد) رحمه الله تر وفات وروسته د اسلامي امارت د نوي امیر شهید ملا اخترمحمد (منصور) تقبله الله د ټاکنې پر مهال په ښکاره ډول تبلیغاتي ساحې ته راوتل او له نړیوالو رسنیو سره د نوي مشرتابه په تائید کې ژوندې مرکې کول و.

د امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد تر وفات وروسته چې اټکل کیده د هغه په څیر د یوه محبوب القلوب او ټول منلی مشر د نه شتون له وجې به د طالبانو په متحد صف کې درزونه رامنځته شي شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمد (منصور) د علماوو او مشایخو په مټ د دغسي رامنځته کیدونکي درز مخنیوی وکړ چې د نوموړي دغه مؤثر اقدامات به هم مهاله د مرحوم مطمئن لخوا په ژوندیو مرکو کې له نړیوالو او محلي رسنیو سره تائید او شریکیدل.

### د مرحوم مطمئن په لیکنو او شعرونو کې د انزوا تأثر

اروانښاد مطمئن د پخې شاعرۍ او لیکوالۍ ترڅنګ د سیاسي فعالیت خارق العادته وړتیا لرله.

د نوموړي دغه موهبوي استعداد هغه مهال لا زیات شو چې کله افغانستان تر بهرني اشغال لاندې راغی او د هغوی په مقابل کې د مقاومت ټول فعالیت په تکتیکي ډول په اختفاء کې تر سره کیده.

مرحوم مطمئن چې د امارت د واکمنۍ په مهال یو پیژندل شوی سیاسي او مطبوعاتي مسؤل شخص و تر نورو زیات د اشغالګرو جاسوسي شبکو تر څار او تعقیب لاندې و.

خو نوموړی د دې باوجود هم د اشغال له پیله د وفات تر شیبې پورې د اشغالګرو په مقابل کې په خورا جسارت او متانت برخوال پاتې شو.

د اشغال له پیله د وفات تر وخته پورې یې د نورو سیاسي فعالیتونو ترڅنګ په سلګونو تحلیلي مقالې، ادبي او جهادي شعرونه ولیکل او په جهادي مطبوعاتو کې نشر کړل.

چې د ځلاند په نوم خبري ویب پاڼه، د (ملا محمد عمر، طالبان او أفغانستان) په نوم تاریخي کتاب او له نړیوالو رسنیو سره یې په خپل غبر کې ژوندۍ مرکې د سیاسي فعالیت ژوندي بیلګې دي.

په ځینو شعرونو او لیکنو کې یې د انزوا تأثر د نوموړي د ځانګړي قلندرانه مزاج او طبیعت محصول دی.

اروښاد مطمئن په دې طبیعت کې د اصحاب کرامو په جمله کې جلیل القدر صحابي حضرت ابوذر غفاري رضی الله عنه ته ورته و چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په اړه داسې فرمایلي:

(رحم الله أبا ذر ، یمشي وحده ، ویموت وحده ، ویبعث وحده) .(رواه البخاري)

ما ته چې خپله څومره د مرحوم مطمئن مستغني او بې پروا مزاج معلوم و نوموړي له تظاهر او ځان ښکارونې څخه سخته کرکه لرله.

له منصب او مادیاتو کاملا بې پروا، اخلاص ، صداقت او پاک زړه توب یې د ژوند ځانګړي مشخصات وو.

په تر ټولو سختو حالاتو کې یې له تر ټولو خطرناک فعالیت (د جهادي مقاومت د ویاندې مسؤلیت) څخه ځان نه وسپماو او په خپل همدې مزاج چې د ځان لپاره یې غوره کړی و مطمئن و.

نوموړی په داسې ویاړ کې له فاني نړۍ سترګې پټې کړې چې د بهرني اشغال په مقابل کې د هرډول ستونزو او مشکلاتو په منلو سره هیڅ کله هم هغوی ته د تسلیمي او تنازل سرټیت نه کړ.

خدای تعالی دې وربانډې ورحمیږي ، فردوس جنت دې ځای او له اشغال څخه د هیواد د آزادۍ نیمګړی آرمان دې خدای تعالی ور پوره کړي. آمین ...

# ویښې کوټې تاند قلم؛

## د قلمي ویښتابه او بریا زېری!

لیکوال: م . حریتمل




د پښتو کتابونو د چاپ په دې نسبتاً ځپانده خو غیر معیاري بهیر کې چې کله یو معیاري او کټور کتاب د چاپ په ګاڼه سینګار شي نو یو ځل بیا د کتاب د مینه والو شوق او ذوق وتخنیږي، مطالعې او د قلم د خوځښت او حرکت لپاره یوه زمینه برابره شي.

که څه هم اوس د پښتو کتابونه د پخوا په پرتله ډېر چاپیږي خو لکه څنګه چې لازمه ده او زموږ ټولنې ته کوم ډول کتابونه اړتیا لري؛ هغه ډول کتابونه ډېر کم چاپیږي.

خو د پښتو د نویو معیاري او نوښتي پنځونو په ډګر کې ښاغلي مولوي صفی الله رائد په هڅو د قلم ارزښت او سپېڅلتیا ته د ژمنتیا په موخه دا نوی چاپ شوی کتاب (ویښې کوټې تاند قلم) بیا هغه څه پخپلو وزرونو کې لري چې په لوستو یې د قلم د لارویانو قلمي او مطالعاتي تنده ماتیږي.

دغه کتاب چې د ښاغلي رائد په هڅو او زیار ترتیب شوی دی په کې د نړدې دېرش تنو معاصرو نومیالیو لیکوالانو او د قلم خاوندانو د قلم په تقدس، ځواک او ارزښت په زړه پورې لیکنې کړي دي چې د ادب او قلم لارویانو ته خورا ډېر څه له ځان سره لري.

په ګران هیواد د صلیبیانو نظامي تاړاک سره سم دلته فرهنګي او تبلیغاتي یرغل هم خپلې کرغېړنې او ناولې پنجې خښې کړې او زموږ ډېر ځوان استعدادونه له خپلو قلمونو سره په شعوري او غیر شعوري توګه د یرغلګرو د فرهنګي یرغل عسکر او همکاران شول او د څو پیسو په مقابل کې د هغوی د تبلیغاتي دستګاه خدمتي ابزار او وسایل شول او خپل قلمونه یې د صلیبي ښکېلاکګرو په خدمت او د حق د لارې لارویانو په مقابل کې وځرخول.

خو بل لور ته بیا په کمو وسایلو او امکاناتو، خو قوي عقیده او ایماندارۍ، د حق د لارې اتلو قلموالو د غرب او کلیسا د پادریانو د فرهنګي یرغل په وړاندې په پوره استقامت داسې مبارزه وکړه چې په وړاندې یې د غرب د فرهنګي یرغل لویې دستګاوې او پلانونه کمزوري شول او لوېدیځ اعتراف وکړ چې له دومره امکاناتو او اسانتیاوو سره یې بیا هم د حق د لارې قلموالو په وړاندې تبلیغاتي او فرهنګي مبارزه ناکامه ده، دا ټول د هغو مبارزو قلموالو او د قلم د تقدس پېژندونکو اتلانو رښتینې او مخلصانه هڅې وې چې د خپل خدای ورکړي استعداد پرمټ یې د خپل قلم نوکې تېرې کړې او د غرب په مخ یې د رد چلیپا راکش کړ او په تندي یې ورته د اسلام شعار ولیکه او همدا مبارزه وه چې غرب یې په فرهنګي برخه کې له ماتې او ناکامۍ سره مخ کړ.

دا کتاب هم د هغو ویاړلو قلموالو او مبارزینو یاد راتازه کوي اوهمدار راز دا کتاب همدې قلموالو ته یو افرین او د مبارزې د بریا زیری دی چې د خپلو قلمونو په نوکو یې د غلیم په تندي د ماتې او ناکامۍ او د خپلو ویاړونو کرښې ولیکلې او دا زرینې کرښې د افغان مسلمان ولس د تاریخ یو ستر باب وګرځېد، همدا راز د هغو نویو قلموالو لپاره د خوځښت او حرکت یوه پلمه ده چې اوس یې قلم راخیستی دی او غواړي چې په دې لاره کې ګام واخلي او د قلم په نوکه د اسلام د مقدس دین خدمت او دفاع وکړي.

په دې کتاب کې ډېر داسې څه شته دي چې شایي د قلم په اړه مو تر ننه لوستلي نه وي او جالبه یې داده چې بېلابېلو لیکوالو د قلم په اړه له بېلابېلو لیدلورو او افکارو څخه غږېدلي دي چې د لوستونکو توجه او پاملرنه راجلبوي.

په دې کتاب د فرهنګي کمیسیون غړي ښاغلي مولوي عتیق الله عزیزي په خپله سریزه کې د ښاغلي رائد دا هڅې ستایلي دي او دا یې ستر کار او تلپاتې خدمت بللی دی او زیاته کړې یې ده چې ښاغلي رائد له یوه لوري قلم ارزولی دی او له بلې خوا یې متعهد قلموال او لیکوالان هم څلولي دي او پرګنو ته یې ورمعرفي کړي دي.

په پای کې ښاغلي مولوي صفی الله رائد ته ددې نوښتګر ګام د اخیستلو او د کتاب د چاپ مبارکي وایم او هیله کوم چې خپلو نوښتګرو پنځونو ته لا دوام ورکړي او ټولنې ته د یادې ټولګې په څېر نور اثار هم وړاندې کړي.

په قلم، ژوند او هڅو یې برکت



## د اسلامي امارت د پخواني ویاند

# مولوي عبدالحی مطمئن

## د وفات په اړه د تسلیت پیغام

په خواشینی سره مو خبر تر لاسه کړ چې د اسلامي امارت پخوانی ویاند او د کندهار ولایت د اطلاعاتو او کلتور مخکنی رئیس مولوی عبدالحی مطمئن صاحب د ورپیښې اوږدې ناروغۍ له امله وفات شو. انا للّٰه و انا الیه راجعون.

د نوموړي د وفات له امله، د هغه کورنۍ، خپلوانو او متعلقینو ته د زړه له کومې تسلیت وایو، مطمئن صاحب ته له اللّٰه تعالی څخه د مغفرت او جنت غوښتنه کوو او کورنۍ ته یې جمیل صبر او جزیل اجر غواړو.

اللّٰه تعالی دې د مرحوم ټول کړي خدمتونه، جهاد، هجرت او ستړیاوي په خپل دربار کي قبولي وګرځوي.

والسلام

د افغانستان اسلامي امارت

۱۰/ ۶/ ۱۴۴۲هـ ق

# د مرحوم مولوي عبدالحي مطمئن وفات،
# ستره فرهنګي ضايعه!

ذبیح الله مجاهد

د اسلامي امارت د بشپړ حاکمیت په وخت کې د اسلامي امارت دراک، ویښ، لیکوال، شاعر او قوال ویاند مولوي عبدالحی مطمئن د وریپیښې ناروغۍ له امله وفات شو.

مرګ حق دی، هر ساه کښ د مرګي میلمه کیږي او له همدې لارې انسانان یو یو د خپل خالق لورته ورځي. خو د ځینو انسانانو وفات ټولنې ته درونډ پریوزي او لویه ضایعه رامنځته کوي. د مرحوم مطمئن صاحب وفات زموږ هېواد افغانستان، اسلامي امارت او خصوصا فرهنګي کهول ته همداسې یوه نه جبرانیدونکې ضایعه وه.

وروسته له هغه چې افغانستان په ۲۰۰۱ کال کې تر امریکایي تاړاک لاندې راغی، لکه څنګه شمیر نور مشران ملګري او د اسلامي امارت د رهبري تر کچې مسئولین، مطمئن صاحب هم له سختو امنیتي ستونزو، تعقیب او ګواښ سره مخ شو. دا چې د امارت د بشپړ تسلط پر مهال مطمئن صاحب د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه اللّٰه نیږدې ویاند پاتې شوی و، نو د ملا صاحب مرحوم د تعقیب او پیدا کیدو لپاره دښمن ته د مطمئن صاحب په لاس ورتلل هم مهم و.

په همدې اساس مطمئن صاحب تر ډیره پورې د خپل امنیت لپاره کوښه اوسیده، په ډیرو جریاناتو کې مخامخ نه مطرح کیده.خو په همدومره زمانه کې یې په فرهنګي لحاظ خپل خدمت ته دوام ورکړ، ښې ښې لیکنې یې وکړې، شعرونه یې وویل او په ځینو نورو خصوصي  ماموریتونو باندې هم د مشرانو لخوا توظیف شو.

دا چې کله کله به د مطمئن صاحب ژبه ګیلمنه ښکاریده، زما په اند ستر علت یې همدا و چې دی د نورو ملګرو له اجتماعي مجالسو، مخامخ ناستو پاستو او د جهادي کارونو په عمق باندې له خبریدو لرې اوسیده.

په عموم کې د مطمئن صاحب ژوند زموږ ټولو لپاره خورا مهم و، دی د قوي قلم څښتن و، که مطمئن صاحب نور هم عمر کړی وای او په فرهنګي برخه کې یې د خدمت آزاده او بې خطره موقع پیدا کړې وای، ممکن ډیرې نورې لیکنې یې کړی وای، ډیر اثار یې پریښي وای او له فرهنګي پلوه یې زموږ د هیواد په ځانګړې ډول اسلامي امارت لپاره ډیر نورڅه هم درلودلی، خو افسوس چې مرګی یې بې وخته میلمه شو او مطمئن صاحب یې په ځوانۍ کې له موږ څخه واخیست.

نوموړي ته مغفرت او د آخرت بریا غواړو، اولادونو، متعلقینو، کورنۍ او دوستانوته یې د زړه صبر او اجر غواړو.
مطمئن صاحب یو نه تکراریدونکی شخصیت و، هغه لاړ بدیل یې نشته او ځای به یې د تل لپاره تش پاتې وي.

اللهم اغفره وارحمه و تجاوز عنه

